

د پوهنې وزارت

# ټولنیز لوستونه

## شپږم ټولگی







ټولنیز لوستونه د شپږم ټولگی لپاره



۱۳۹۹ هـ. ش.



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




# ټولنیز لوستونه

## شپږم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۹ هـ.ش.

## د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** ټولنیز لوستونه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د ټولنیزو علومو د برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اېډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اېډیټ ډیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** شپږم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۹ هجري شمسي

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# لړلیک

# لومړی څپرکی: زموږ هېواد

**د څپرکي موخې:**

- د خپل گران هېواد سره پېژندگلوي پیدا کړي.
- دولت ته د ټولنې د اړتیا پرمفهوم پوه شي.
- د هېواد له ولایتونو سره پېژندگلوي پیدا کړي.
- په ټولنه کې د نظم په راوستلو کې د اساسي قانون رول تشریح کړای شي.
- د افغانستان تاریخي ویاړونه بیان کړای شي.
- د دولت د درې گونو قواو په اړه توضیحات ورکړای شي.
- په ټولنه کې د قانون اړتیا درک او د هغه له پلي کولو او تطبیق سره مینه پیدا کړي.

لومړی لوست

## زموږ هېواد

**پوښتنه**: ستاسو په آند، زموږ هېواد په کومه لویه وچه کې موقعیت لري؟




**زموږ گران هېواد افغانستان د آسیا د لویې وچې په سویل کې پروت او د شپږو هېوادونو سره گاونډي دی. شمال ته یې د تاجکستان، ازبکستان او ترکمنستان جمهوریتونه، لوېدیځ ته یې د ایران اسلامي جمهوریت، شمال ختیځ ته یې د**

چین د خلکو جمهوریت، سوېل او ختیځ ته د پاکستان اسلامي جمهوریت چې د ډیورند په نامه د تپل شوې کرښې په واسطه په نښه شوی ګډه پوله لري.

زموږ د هېواد پراخوالی (۶۵۲.۰۰۰) کیلو متره مربع او نفوس یې دېرش میلیونو تنو ته رسیږي. افغانستان د طبیعي زېرمو له پلوه د نړۍ د شتمنو او بډای هېوادونو له ډلې شمېرل کېږي.، د مختلفو تمدونونو زانګو ده او ځلانده تاریخ لرونکی دی. آریانا، خراسان او افغانستان یې تاریخي نومونه دي.

افغانستان د جغرافیایي موقعیت له پلوه د منځنۍ آسیا او سوېلي آسیا د هېوادونو ترمنځ په نښلېدونکې مهمې سوداګریزه سیمه کې پروت دي. له دې موقعیت څخه ښه ګټه اخېستنه د سوداګریزې پراختیا او زموږ د هېواد د اقتصادي کچې د لوړېدو سبب ګرځي.




په ډلو کې د افغانستان ګاونډي هېوادونه د نقشې پرمخ ښکاره او د هغو نومونه بیان کړئ.




۱- افغانستان له څو هېوادونو سره ګاونډی دی؟

۲- زموږ د هېواد مساحت څو کیلومتر مربع دی؟

۳- د افغانستان په شمال کې کوم هېوادونه دي؟




د افغانستان نقشه په خپلو کتابچو کې رسم او په هغې کې ګاونډي هېوادونه په نښه کړئ.

# دولت ته د ټولنې اړتیا

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، ټولنه دولت ته ولې اړتیا لري؟**




ټولنه د انسانانو هغه ټولګی دی چې د ډېرې مودې لپاره په یوه ګډه سیمه کې ژوند کوي او په خپلو کې منظم دیني، ټولنیز، اقتصادي، سیاسي او فرهنګي اړیکې لري. هغه خلک چې په یوه هېواد کې ژوند کوي د ملت په نامه یادېږي.

ټولنه د قانون د پلي کولو، د نظم ټینګښت، د کورنۍ او بهرني امنیت د راوستلو او د سرغړونو او جرمونو د مخنیوي لپاره دولت ته اړتیا لري.

هره ټولنه د خپلو وګړو د چارو د سمون او تنظیم لپاره دولت ته اړتیا لري. دولت د خلکو د خدمتونو، د امنیت د ټینګښت او سوکالۍ لپاره بېلابېلې اداري

جوړوي. هېڅ دولت د رئیس او رهبر څخه پرته نشته چې په بېلابېلو سیاسي نظامونو کې د مشر، پاچا، سلطان او یا د ولس مشر په مختلفو نومونو یادېږي.

دولت دنده لري چې د ټولنې د مختلفو ادارو ترمنځ همغږي راولي او د خلکو په مال، ځان، ناموس او دین باندې د تېري مخنیوی وکړي او که چېرته کوم هېواد د دې هېواد تر واک لاندې خاورې باندې تېری وکړي، له هغه څخه به ساتنه کوي. که چېرته په یوه هېواد کې دولت او نظام نه وي، هغه هېواد د ګډوډۍ او بدبختۍ خواته ځي.

له هېواد او نظام څخه ساتنه د ټولنې د هرغړي دنده ده.



## فعالیت

په ډلو کې د دولت او نظام د اهمیت په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- ټولنه تعریف کړئ

۲- ټولنه دولت ته ولې اړتیا لري؟

۳- د دولت دندې بیان کړئ؟



## کورنۍ دنده

د هغې ټولنې په اړه چې دولت نه لري، څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

دریم لوست

# اساسي قانون

## پوښتنه

ستاسو په فکر، په ټولنه کې د قانون شتون څه ګټه لري؟






قوانین هغه مقررات دي چې دولت هغه جوړ او اعلانوي، ترڅو خلک هغه د ټولنې د امن او نظم لپاره مراعات کړي.

هره ټولنه د نظم د رعایت او د بې نظمۍ د مخنیوي لپاره، قانون او مقرراتو ته اړتیا لري. دولت د دولتي ارګانونو او مؤسسو ترمنځ د همغږۍ، د خلکو د حقونو رعایتولو، د سوکاله او آرامه ژوند کولو لپاره قوانین وضع کوي. په یوه هېواد کې ترټولو مهم قانون، د هغه اساسي قانون دی. د هرهېواد د اداره کولو طریقه او تګلاره د هغه هېواد په اساسي قانون کې ځانګړې شوې ده. د ټولنې ټول قوانین له اساسي قانون څخه الهام اخلي، له دې امله اساسي قانون د قوانینو د مور په نامه هم نومول شوی ده. د افغانستان لومړنی اساسي قانون د شاه امان الله خان په مهال په ۱۳۰۳ هـ. ش. کال د (اساسي نظام نامې) په نوم د پغمان په لویه جرګه کې تدوین او تصویب شو.

دویم قانون د اساسي اصولنامې په نوم، د نادرشاه د واکمنۍ په مهال، دریم

قانون د محمدظاهرشاه په مهال، څلورم قانون د محمد داوودخان د جمهوريت په مهال او پنځم اساسي قانون د دموکراتيک جمهوريت په مهال په کار ولويد.

د هېواد اوسنی قانون د ۱۳۸۲ هـ.ش.کال د مرغومي په ۱۴ مه د لويې جرگې لخوا په تصويب ورسيد. د افغانستان اساسي قانون، يوه مقدمه، ۱۲ څپرکي او ۱۶۲ مادې لري. د اساسي قانون په دريمه ماده کې راغلي دي: (په افغانستان کې هېڅ قانون نشي کولای د اسلام د سپيڅلي دين د معتقداتو او احکامو مخالف وي) چې دا د هېواد د اسلامي توب ښکارندوی دی.

د اساسي قانون موخه د خلکو هوساينه او خوښي، د نظم راوستل او د گډوډۍ له خطر څخه د ټولنې ساتنه، د خلکو د حقونو ساتنه، د ظلم مخنيوی، د خپلواکۍ ساتنه او د ټولنيز نظم ساتنه ده،نو له دې کبله د ټولنې هرغړی بايد پرقوانينو ځان پوه او له هغه سره سم عمل وکړي، ځکه چې له قانون څخه بې خبري عزر نه منل کېږي.



## فعاليت

په ډلو کې د اساسي قانون په اړه بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- اساسي قانون څه ته وايي؟

۲- په هېواد کې تر ټولو مهم قانون کوم دي؟

۳- ټولنه ولې قانون ته اړتيا لري؟



## کورنۍ دنده

د افغانستان د اساسي قانون د تاريخچې په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# زموږ دولت

**پوښتنه**

څه فکر کوئ، د دولت دندې او صلاحیتونه څه دي؟



زموږ د هېواد نظام اسلامي جمهوریت دی. اسلامي توب او وګړنيزتوب زموږ د دولت دوه مهمې ځانګړتياوې دي، د افغانستان اسلامي جمهوريت په نظام کې د ټولنې هوساينه، پرمختګ او نيکمرغي د اسلام د مُبين دين د احکامو په رڼا کې، د خلکو د ارادې پربنسټ منځته راځي.

د افغانستان اسلامي جمهوري دولت د لاندې دريوو قواوو څخه جوړ شوی دی:

۱- مقننه قوه: د هېواد لپاره قانون جوړوي چې له مشرانو جرګې او ولسي جرګې څخه جوړه شوې ده.

۲- اجرائيه قوه: د قوانينو د پلي کېدو او تطبيق دنده پرغاړه لري، او دنده يې له حکومت او خپلواکو ادارو څخه عبارت ده.

**۳- قضائیه قوه:** له سترې محکمې او نورو محکمو څخه جوړه ده چې دنده یې د عدالت پلي کول او د شخړو حلول دي.

ولسمشر د دولت په سر کې دی او د درې ګونو قواو (مقننه، اجرائیه او قضائیه) څخه څارنه کوي. د هرې قوې دندې او صلاحیتونه په اساسي قانون کې ټاکل شوي دي.

پر موږ خپل دولت ګران دی، تل له هغه سره مرسته کوو او د هغه ملاتړ کوو. له دولت سره د خلکو مرسته او ملاتړ د هېواد د پرمختګ لامل کېږي.




په ډلو کې د درې ګونو قواو په اړه خبرې وکړئ.




۱- زموږ دولت کومې ځانګړتیاوې لري؟

۲- د درې ګونو قواو نومونه واخلئ.

۳- د مقننه قوې دندې کومې دي؟




د خپل دولت په اړه یوه مقاله په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# ملي شورا

## پوښتنه

ستاسې په آند، ملي شورا څه اهمیت لري؟



ملي شورا مقننه یا قانون جوړونکې قوه ده چې له دوو مجلسونو (ولسي او مشرانو جرګې) څخه جوړه شوې ده.

ملي شورا لومړی ځل په ۱۳۱۰ هـ.ش. د محمد نادرشاه په سلطنت کې تأسیس شوه، د افغانستان د ملي شورا غړي د ټاکنو له لارې د خلکو لخوا ټاکل کېږي.

د ملي شورا دندې، قانون جوړونه، د اجراییه قوې څارنه او د خلکو استازیتوب دی. ملي شورا د خپلو فعالیتونو د ښه سمون لپاره کاري ډلې جوړوي چې د کمیسیونونو په نامه یادیږي، د ملي شورا هر غړی د دې کاري کمیسیونونو څخه د یوه غړیتوب لري.

ټولو تسوید شویو قوانینو او یا نورو موضوع ګانو باندې لومړی په کمیسیونونو کې بحث کېږي او بیا د نهایي پریکړې لپاره عمومي مجلس ته وړاندې کېږي
پارلمان د دولت یو بنسټیز رکن او د خلکو د ارادې تمثیل کوونکی دی.
پارلمان پر قانون جوړونې سربېره د استبداد مخه هم نیسي.



## فعالیت

په ډلو کې د ملي شورا (پارلمان) په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- ملي شورا څه وخت او د کوم پاچا په وخت کې تأسیس شوه؟
٢- د ملي شورا صلاحیتونه بیان کړئ.
٣- د ملي شورا د کمیسیونونو دندې څه دي؟



## کورنۍ دنده

د ولسي جرګې په اړه څوکرښې په خپلوکتابچو کې ولیکئ.

# ولسي جرگه

## پوښتنه

**ستاسې په فکر، د خلکو استازي ولسي جرگې ته څرنگه لار مومي؟**




**د افغانستان د ملي شورا په دوو مجلسونو کې یوه ده. د ولسي جرگې غړي له (۳۴) ولایتونو څخه د خلکو په رایو د پنځو کلونو لپاره ټاکل کیږي.**

**ولسي جرگه (۲۵۰) تنه غړي لري چې د اساسي قانون له مخې د ولسي جرگې د هیڅ غړي عمر باید له (۲۵) کلونو څخه ټیټ نه وي.**

د ولسي جرګې ځینې صلاحیتونه دا دي:

- د قوانینو تصویب
- د بودجې تصویب
- وزیرانو ته د اعتماد د رأیه ورکول
- د حکومت د کارونو څارنه

د ولسي جرګې غړي په خپلوکې د ولسي جرګې رئیس، معاونان او منشي ټاکي د ولسي جرګې پریکړې د رایو په اکثریت کېږي.



فعالیت

په ډلو کې د ولسي جرګې د صلاحیتونو په اړه خبرې وکړئ.



ځواب ورکړئ

١- د ولسي جرګې غړي د څو کلونو لپاره ټاکل کېږي؟
٢- د ولسي جرګې اداري هیئت څرنګه ټاکل کېږي؟
٣- د ولسي جرګې د غړو مهم صلاحیتونه بیان کړئ.



کورنۍ دنده

د ولسي جرګې د صلاحیتونو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# مشرانو جرګه

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، د مشرانو جرګې څو غړي انتصابي دي؟**



**مشرانو جرګه د افغانستان د اسلامي جمهوریت د ملي شورا له دوو مجلسونو څخه یوه ده. مشرانو جرګه ت۱۰۲ تنه غړي لري چې دوه ثلثه یې انتخابي او یو ثلث یې انتصابي دي، د دې مجلس یو ثلث د ولایتي شوراګانو له منځه او یو ثلث یې د ولایتونو د ولسوالیو شورګانو څخه ټاکل کیږي او یو ثلث یې چې دوه کسه د معلولانو د استازو او دوه کسه د کوچیانو د استازو په ګډون د ولسمشر لخوا ټاکل کیږي.**

**د مشرانو جرګې د غړیتوب لپاره باید نوماند د ۳۵ کلونو عمر پوره کړی وي.**

**د مشرانو جرګې استازي د پنځو کلونو لپاره ټاکل کیږي.**

مشرانو جرگه د ولسي جرګې په څېر اداري هيئت لري.

مشرانو جرگه، د ځينو چارو په استثنا، هغه صلاحيتونه لري کوم چې ولسي جرگه يې لري. د دولت لخوا د قانون طرح لومړی په ولسي جرگه کې او وروسته په مشرانو جرگه کې په تصويب رسيږي او د جمهور رئيس له امضا وروسته د اجرأ وړ کيږي.

د مشرانو جرگه هم تخصصي کميسيونونه لري.

که زموږ خلک هغو کسانو ته رايه ورکړي چې د تقوا لرونکي، وطن پالونکي، تجربه لرونکي او د لوړو زده کړو خاوندان دي او د بشر ضد او مدني حقونو ضد په تور نه دي محکوم شوي نو په دې توگه به موږ يو ځواکمن پارلمان، ښه قانون او قانونمنده او پرمختللې ټولنه ولرو.



## فعاليت

په ډلو کې د مشرانو جرگې د دندو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- د مشرانو جرگې څو غړي انتخابي او څو يې انتصابي دي؟

٢- له ولاياتو او ولسواليو څخه څو کسان مشرانو جرگې ته ټاکل کيږي؟

٣- د مشرانو جرگې غړي دې مجلس ته څرنگه لاره مومي؟



## کورنۍ دنده

د مشرانو جرگې د دندو په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# اجراییه قوه

**پوښتنه**

**ستاسو په اند، اجرائیه قوه کومې دندې لري؟**



**اجرائیه قوه یعنې حکومت چې له وزیرانو څخه جوړ دی، د ولسمشر تر ریاست لاندې دنده سرته رسوي.**

**وزیران د حکومت غړي دي او خپلې دندې د اساسي قانون، نورو قوانینو او تقنیني اسنادو د حکمونو مطابق سرته رسوي.**

**وزیران د وزارت د مسوولیت ترڅنګ، د کابینې د غړي په توګه د ولسمشر او ملي شورا پر وړاندې مسوولیت لري.**

**وزارت ته د نوماندیدو شرطونه دي:**

د افغانستان تابعیت، لوړې زده کړې، تخصص، کاري تجربه، د نیک شهرت درلودل او د ۳۵ کلونو عمر پوره کول، بشري ضد جرمونه نه درلودل او یا له مدني حقونو څخه نه محرومیت.

د اجرائیه قوې ځینې دندې او صلاحیتونه په لاندې ډول دي:

د اساسي قانون، نورو قوانینو او د محکمې د قطعي فیصلو عملي کول، د خپلواکۍ، د هېواد د خاورې له بشپړتیا څخه دفاع، په نړیواله کچه د افغانستان د ملي ګټو او حیثیت ساتنه، د عامه نظم ساتنه او د فساد له منځه وړل.

د اجرائیه قوې اهمیت په دې کې دی چې د یوه دولت وده او پرمختګ مخکې له دې چې په نورو قواو پورې تړاوو لري، د اجرائیه قوې پورې تړلې دي، ځکه چې د پرمختیایي پلانونو او پرېکړو پیل او پای په همدې قوې پورې اړه پیدا کوي.



## فعالیت

په ډلو کې د اجرائیه قوې په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د اجرائیه قوې مفهوم بیان کړئ.

۲- وزیران کوم ارګان ته مسوول دي؟

۳- وزارت ته د نوماندېدو څو شرطونه ووایئ.



## کورنۍ دنده

وزارت ته د نوماندېدو څو شرطونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# قضائیه قوه

**پوښتنه**

ستاسو په اند، قضائیه قوه څه دنده لري؟







قضائیه قوه د دولت یو خپلواک رکن دی چې له سترې محکمې، د استیناف محکمو او ابتداییه محکمو څخه جوړه ده،ستره محکمه د افغانستان د اسلامي جمهوریت د قضائیه قوې په سر کې ځای لري.

د محکمو قاضیان چې د پېښو او قضیو د حلولو دندې پرغاړه لري، د قضیو په څېړنه کې اساسي قانون او نور قوانین تطبیقوي، له دې کبله قاضیان د عدالت په پلي کولو او د دولت د حاکمیت په ټینګولو کې مهم رول او ستر مسؤولیت لري.

قاضي په خپلو کړنو کې خپلواک دي او یوازې د اساسي قانون او نورو قوانینو د احکامو تابع دی. هېڅ یوه مرجع حق نه لري چې قاضي د خپلو شخصي

اوامرو او لارښوونو تابع او هغه خپل اطاعت ته اړه کړي.

قاضیان په ټولنه کې د قضا د دندې په سرته رسولو سره د قانون او عدالت د تطبیق کوونکي ښه بېلګه او عالي نمونه ګڼل کېږي.

که چیرې مسلکي، کار پوهه زړه سواندي، تقوا لرونکي، هېوادپالونکي او د لوړو زده کړو درلودونکي اشخاص د قضا په مهمو او لوړو برخو کې مقرر شي، نو د یوې ښې قضاییه قوې درلودونکي به واوسو.

د عدالت ټینګښت د قضاییه قوې له مهمودندو څخه ګڼل شوی دی.



## فعالیت

په ډلو کې د قضائیه قوې په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- قضاییه قوه له کومو محکمو څخه جوړه ده؟

۲- قاضیان د قضیو په څېړنه کې له کومو قوانینو څخه استفاده کوي؟

۳- آیا قاضي په خپلو کړنو کې خپلواک دی؟ په دې اړه معلومات ورکړئ.



## کورنۍ دنده

د قضائیه قوې په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د افغانستان وياړونه

## پوښتنه

ستاسې په فکر، افغانستان کوم وياړونه لري؟



زموږ ګران هېواد افغانستان د نړۍ په هېوادونو کې ځانګړی موقف او ځای لري، د جغرافيايي موقعيت له پلوه افغانستان د آسيا په زړه کې او د آسيا جنوبي برخه د هغه له مرکز سره نښلوي.

د افغانستان خلکو د لرغوني تاريخ په درلودلو سره په بشري تمدنونو، په ځانګړې توګه په اسلامي تمدن کې مهم رول لوبولی دی.

د افغانستان خاوره د زرګونو عالمانو، پوهانو، اديبانو او مشهورو شخصيتونو د پالنې زانګو ده چې هريو يې په بېلابېلو برخو کې لويې کارنامې سرته رسولې دي، د بيلګې په توګه: نعمان بن ثابت (امام ابوحنيفه (رح)) امام ابن حبان بستي، سلطان محمود غزنوي، ابوريحان البيروني، سنايي غزنوي، شيخ الاسلام

عبدالله انصاري هروي، مولانا جلال الدين محمد بلخي، گوهرشاد بيگم، کمال الدين بهزاد، اميرعلي شيرنوائي، مولانا عبدالرحمن جامي، حاجي ميرويس خان هوتک، احمدشاه بابا، پير روښان، سيدجمال الـدين افغان، فيض محمد کاتب، محمود طرزي او په سلګونه نور اديبان او عالمان زموږ د ګران هېواد تاريخي وياړونه دي.

زموږ د خلکو په نورو وياړونو کې يو هم دادي چې د تاريخ په اوږدوکې يې د پرديو د اسارت او غلامۍ ځنځيرونه هېڅکله نه دي منلي او د خپل ځان او مال په بدل يې خپله خپلواکي ساتلې ده.

موږ د خپل هېواد افغانستان په لرلو سره پرځان وياړو او کوښښ کوو چې خپلې تاريخي وياړنې وساتو او په خپلو ښو او لويو کارنامو دا وياړنې لا زياتي کړو.



## فعالیت

په ډلو کې د افغانستان د تاريخي وياړونو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- افغانستان د نړۍ د هېوادونو په قطار کې کوم موقف او مقام لري؟

۲- د افغانستان خلک په کومو تمدنونو کې روښانه رول لري؟

۳- زموږ خلک کوم لوی وياړونه لري؟



## کورنۍ دنده

د افغانستان د مشهورو شخصيتونو په هکله په خپلو کتابچو کې يوه مقاله وليکئ.

# زموږ د هېواد ولایتونه

**پوښتنه**

ستاسې په فکر، افغانستان څو ولایتونه لري؟



زموږ هېواد افغانستان په ۳۴ ولایتونو وېشل شوی او پلازمېنه يې د کابل ښار دی. هرولایت څوولسوالۍ لري. د ټولو ولسواليو شمېر يې ۳۶۴ ته رسېږي.

د الفبأ د تورو په ترتيب سره د ولاياتو نومونه

| | | |
|---|---|---|
| ۱ | ارزگان | ترینکوټ |
| ۲ | بادغيس | قلعه‌نو |
| ۳ | باميان | باميان |
| ۴ | بدخشان | فيض‌آباد |
| ۵ | بغلان | پلخمري |
| ۶ | بلخ | مزار شريف |
| ۷ | پروان | چاريکار |
| ۸ | پکتيا | گرديز |
| ۹ | پکتيکا | شرن |
| ۱۰ | پنجشير | بازارک |
| ۱۱ | تخار | تالقان |
| ۱۲ | جوزجان | شبرغان |
| ۱۳ | خوست | خوست |
| ۱۴ | دايکندي | نيلي |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۵ | زابل | قلات |
| ۱۶ | سرپل | سرپل |
| ۱۷ | سمنگان | ایبک |
| ۱۸ | غزني | غزني |
| ۱۹ | غور | چغچران |
| ۲۰ | فارياب | ميمنه |
| ۲۱ | فراه | فراه |
| ۲۲ | کندوز | کندوز |
| ۲۳ | کندهار | کندهار |
| ۲۴ | کابل | کابل |
| ۲۵ | کاپیسا | محمود راقي |
| ۲۶ | کونړ | اسعدآباد |
| ۲۷ | لغمان | مهترلام |
| ۲۸ | لوگر | پل علم |
| ۲۹ | ميدان وردک | ميدان‌شهر |
| ۳۰ | ننگرهار | جلال‌آباد |
| ۳۱ | نورستان | پارون |
| ۳۲ | نیمروز | زرنج |
| ۳۳ | هرات | هرات |
| ۳۴ | هلمند | لښکرگاه |



## فعالیت

په ډلو کې د هېواد د ولاياتو نومونه واخلئ او په نقشه کې يې وښياست.



## ځواب ورکړئ

۱- افغانستان په څو ولايتونو وېشل شوی دی؟

۲- د هېواد د ولسواليو شمېر څو دی؟

۳-د خپل ولايت د گاونډيو ولايتونو نومونه په نقشه کې وښياست



## کورنۍ دنده

د هېواد د نقشې له مخې د خپل ولايت نقشه په خپلو کتابچو کې رسم کړئ.

**د څپرکي موخې:**

- د پاکستان د اسلامي جمهوري دولت سره پېژندګلوي پيدا کړي.
- د ایران اسلامي جمهوري دولت وپېژني.
- د نقشې پرمخ د تاجکستان څلور خواووې وښودلای شي.
- د ازبکستان د مهمو محصولاتو نومونه واخيستلای شي.
- د ترکمنستان هېواد د نقشې پرمخ پيدا او د مساحت او نفوس پر اړه يې معلومات ورکړای شي.
- له ګاونډيو هېوادونو سره پېژندګلوي، دوستي او يو له بل سره د زغم او منلو روحيه د هغوی په وجود کې پياوړې شي.

دولسم لوست

# د پاکستان اسلامي جمهوريت

**پوښتنه: ستاسو په فکر، د افغانستان ختيځ او سويل لوري ته کوم هېواد دی؟**

د پاکستان اسلامي جمهوريت په شمالي نيمه کره کې دی او د آسيا د لويې وچې له سويلي هېوادونو څخه دی چې زموږ د هېواد په ختيځ او سويلي خوا کې د ډيورند د تحميلي کرښې په واسطه بېل شوی دی. شمال ته يې چين، ختيځ ته يې هند، شمال او لوېديځ ته يې افغانستان، لوېديځ ته د ايران او سويل کې د هند سمندر موقعيت لري. د هند سمندر پر غاړه د دې سبب شوی چې زموږ د هېواد زياتره سوداګريز توکي د کراچۍ د بندر له لارې وارد او صادر شي.




د پاکستان د پراخوالی (۷۹۶۰۰۰) کيلو متره مربع دی او نفوس يې په ۲۰۱۲ م. کال کې ۱۹۹ ميليونو تنو ته چې زياتره يې مسلمانان دي. اټکل شوی و د حکومت ډول يې اسلامي جمهوري دی. له څلورو ايالتونو پنجاب، سند، پښتونخوا او بلوچستان څخه جوړ شوی دی. رسمي ژبې يې اردو او انګليسي دي. نورې ژبې يې پنجابي، سندي، پښتو او بلوڅي دي. پلازمېنه (پايتخت) يې د اسلام آباد ښار او نور مهم ښارونه يې پېښور، کراچۍ،

لاهور، راولپنډۍ، حیدرآباد، فیصل آباد او نور دي. د پاکستان اقلیم د هند د سمندر په زیاترو ساحلي سیمو کې تود او مرطوب، د هېواد په شمالي سیمو کې معتدل او په صحرایې مرکزي سیمو کې تود او وچ دی.

کرنه د پاکستان د خلکو خورا مهم اقتصادي فعالیت دی. ددې هېواد په حاصلخېزو سیمو کې غنم، وریجې، پنبه او داسې نور نباتات کرل کیږي.

د پاکستان هېواد د کانونو له پلوه غني دي چې مهم یې اوسپنه، د ډبرو سکاره او د طبیعي ګاز زېرمې دي.

په دې هېواد کې د اوبدلو، وریښلو، کیمیاوي سرې د تولید او ماشین آلاتو د صنعت کارخانې شته چې د دغو کارخانو ځینې تولیدات بهرنیو هېوادونو ته هم صادرېږي او له بهر څخه نفت، پولاد، کیمیاوي توکي، کرنیز ماشین آلات او نور د اړتیا وړ توکي واردوي.

مشهور غر یې د همالیا او مشهور سیند یې د سند سیند دي، چې د همالیا له غرونوڅخه سر چینه اخلي او د هند سمندر ته توییږي. د پیسو واحد یې د پاکستانۍ روپۍ ده. پاکستان هېواد په ۱۹۴۷م کال کې چې د ۱۳۲۲ لمریز کال سره سمون خوري، د هند له هېواد څخه د یوه اسلامي هېواد په نامه را بېل او خپله خپلواکي یې ترلاسه کړه.




په ډلو کې لاندې جدول په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

| کرنیز حاصلات | د پیسو واحد | مهم ښارونه | د خپلواکۍ نېټه | پایتخت | د پاکستان موقعیت |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | |

## ځواب ورکړئ

۱- د پاکستان هېواد د آسیا د لوې وچې په کومه برخه کې پروت دی؟
۲- د پاکستان زیاتره خلک د کوم دین پیروان دي ؟
۳- په پاکستان کې زیات خلک په کومو ژبو خبرې کوي؟

## کورنۍ دنده

د پاکستان نقشه په زیر سره وګورئ او د مهمو ښارونو نومونه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د ایران اسلامي جمهوریت

## پوښتنه

د ایران اسلامي جمهوریت زموږ د ګران هېواد کوم لوري ته پروت دی؟




د ایران اسلامي جمهوریت په شمالي نیمه کره کې د آسیا د لوېدیځې وچې له سویل لوېدیځو هېوادونو څخه دی چې زموږ د هېواد لویدیځې خوا ته موقعیت لري.

شمال خوا ته یې ترکمنستان، آذربایجان، ارمنستان، ختیځ ته یې افغانستان او پاکستان، لوېدیځ ته یې د ترکیې او عراق هېوادونه دي. همدارنګه په شمال کې د کسپین له سمندرګي او په سویل کې د عمان له سمندرګي او د فارس له خلیج سره ګډه پوله لري.

د دې هېواد پراخوالی (۱۶۴۸۱۹۵) کیلومتر مربع او په ۱۳۹۲ هـ.ش کال کې یې د نفوسو شمېر (۷۷) میلیونونه تنه اټکل شوی و. زیاتره خلک یې مسلمانان او رسمي ژبه یې فارسي ده. د حکومت ډول یې اسلامي جمهوریت دی. پلازمېنه یې د تهران ښار او نور مهم ښارونه یې: مشهد، اصفهان، تبریز، شیراز، اهواز او کرمانشاه او نور دي.

مهم کرنیز تولیدات یې: چای، وریژې، پنبه، غنم، جغندر، جوار او ډول ډول مېوې، په

ځانګړي توګه خرما او پسته ده. په ایران کې د نفتو، ګازو زېرمې، د اوسپنې، ډبروسکرو، مسوه او فیروزې کانونه او داسې نور شته دي. همدارنګه په دې هېواد کې د اوسپنې ویلې کولو، کیمیاوي صنایعو، موټر جوړولو، د کرنې د ماشین آلاتو، نساجۍ، فرش اوبدلو، بوټ ګنډلو، یخچال جوړولو او کاغذ جوړولو صنایعو پر مختګ کړی دی، د دې تولیداتو یوه زیاته برخه بهر ته هم صادروي او له بهر څخه نقلیه وسایل، ماشین آلات او نور د اړتیا وړ توکي واردوي.

مشهور غرونه یې زاګروس او البرز دي او مشهور سیند یې کارون دي چې د زاګروس له غرونو څخه سرچینه اخلي او د جلې او فرات د سیندونو په ګډو اوبو (شطرالعرب) کې توییږي.

د ایران اقلیم د کسپین د سمندرګي په ساحلي سیمو کې مرطوب او زیات باراني دی، خو منځنۍ برخې یې وچ او صحرایي اقلیم لري.

زموږ هېواد د ایران اسلامي جمهوریت سره دیني، ژبني، فرهنګي، اقتصادي او سوداګریز دوستانه اړیکې لري. د هېواد یو شمېر صادراتي او وارداتي مالونه د ایراني بندرونو له لارې انتقالیږي.



### فعالیت

لاندې جدول په ډله ییز کار کې بشپړ کړئ.

| د ایران موقعیت | پایتخت | د خپلواکۍ تاریخ | مهم ښارونه | د پیسو واحد | کرنیز حاصلات |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | |

### ځواب ورکړئ

۱- د ایران د سترو ښارونو نومونه واخلئ.

۲- د ایران د کرنیزو پیداوارو نومونه واخلئ.

۳- ایران ولې د تېلو او ګازو د صادرونکو هېوادونو له جملې څخه دی؟

### کورنۍ دنده

د ایران نقشه په زیر سره وګورئ او د مهمو ښارونو نومونه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د تاجکستان جمهوریت

**پوښتنه**

نقشې ته وګورئ، د تاجکستان لوېدیځ ته کوم هېواد پروت دی؟

**د تاجکستان جمهوریت د منځنۍ آسیا له هېوادونو څخه دی، زموږ د هېواد په شمال کې موقعیت لري، غرني او وچې پورې تړلی دی.**



**شمال ته یې د قرغزستان جمهوریت، ختیځ ته یې دچین ولسي جمهوریت، لوېدیځ ته یې د ازبکستان جمهوریت او سوېل ته یې د افغانستان اسلامي جمهوریت پروت دی.**

**په ۱۳۷۰ لمریز کال کې د پخواني شوروي اتحاد ړنګېدل، د تاجکستان او نورو جمهوریتونو د خپلواکۍ لامل شو. پراخوالی یې (۱۴۳۱۰۰) کیلو متر مربع او نفوس یې په ۲۰۱۴ میلادي کې (۸) میلیونه تنه اټکل شوی و. د دې هېواد وګړي مسلمانان دي. په فارسي او روسي ژبو خبرې کوي.**

**د هېواد پلازمېنه یې د دوشنبې ښار او نور مشهور ښارونه یې خجند، کولاب او قرغان تیپه دي.**

**د تاجکستان غرنۍ او لوېدیځې سیمې ډېر اورښت لري او نورې سیمې یې وچ اقلیم لري چې په ژمي کې سړې او په دوبي کې تودې او وچې وي.**

**د تاجکستان مهم کانونه د ډبروسکاره، آلمونیم، سرب، اوسپنه او سره زر دي.**

صنعتي مهم تولیدات یې اوسپنه، منسوجات، کیمیاوي توکي او د برېښنا سامان الات دي. مهم صادرات یې المونیم، پنبه اود برښنا انرژي ده .مهم واردات یې نفت، طبیعي ګاز، غلې او نور د اړتیا وړ توکي دي.

ددې هېواد کرنیز محصولات ډول ډول غلې دانې، وریژې، سابه، پنبه او مېوې دي. مشهور سیندونه یې سېردریا(سیحون)، آمو دریا(جیحون)، سرخ آب او نور دي مشهور غرونه یې په شمال کې زرافشان، آلاي، ترکستان او په سوېل کې د پامیر لوړه سطحه موقعیت لري.

زموږ هېواد د تاجکستان د جمهوریت سره دیني، ژبني، فرهنګي، اقتصادي او سوداګریز دوستانه اړیکې لري.زموږ دهېواد سوداګریز اړیکې له تاجکستان سره د شېرخان بندر له لارې عملي کېږي.



## فعالیت

لاندې جدول په ډلو کې په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

| صنایع | مشهور سیندونه | مشهوربنارونه | ژبه | دین | پایتخت | د تاجکستان موقعیت |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | |



## ځواب ورکړئ

۱- تاجکستان څه وخت خپله خپلواکي تر لاسه کړه؟
۲-د تاجکستان د هېواد څلور خواوې وواياست.
۳- د تاجکستان د کرنیزو حاصلاتو نومونه واخلئ.



## کورنۍ دنده

د تاجکستان د هېواد نقشه په زیر سره وګورئ او د مهمو ښارونو نومونه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د ازبکستان جمهوریت

## پوښتنه

څه فکر کوئ، ازبکستان د آسیا د لویې وچې او زموږ د هېواد په کومه برخه کې پروت دی؟




ازبکستان هم د منځنۍ آسیا له هېوادونو څخه دی چې زموږ د هېواد شمال خوا ته پروت دی.

شمال او لوېدیځ ته یې د قزاقستان جمهوریت، سوېل ته یې د افغانستان او ترکمنستان جمهوریتونه، ختیځ ته یې د تاجکستان او قرغزستان جمهوریتونه موقعیت لري.

په ۱۳۷۰ لمریز کال کې یې د پخواني شوروي اتحاد تر ړنګېدلو وروسته خپله خپلواکي تر لاسه کړه. پراخوالی یې (۴۴۷۴۰۰) کیلو متره مربع دی. د نفوسو شمېر یې (۲۲) میلیونو تنو ته رسېږي. د دې هېواد خلک ازبکان دي. رسمي ژبه یې ازبکي او په روسي او فارسي ژبو هم خبرې کوي. د دې هېواد زیاتره خلک مسلمانان دي او د حکومت ډول یې جمهوري دی.

د تاشکند ښار د دې هېواد پلازمېنه ده، سمرقند، بخارا او اورگنج یې مشهور ښارونه دي.

د ازبکستان اقلیم وچ دی ژمی یې لنډ او اوړی یې اوږد تود او وچ وي. د دې هېواد په ختیځ کې لوړ غرونه او په مرکزي او لوېدیځو برخو کې یې پراخې دښتې دي. مشهور سیندونه یې سېردریا او د آمو سیندونه دي چې دواړه د ارال

په جهيل کې تويېږي.

په دې هېواد کې پنبه او وريژې کرل کېږي او د اورېښمو د چنجيانو روزنې زيات پرمختګ کړی دی، ازبکستان د نړۍ د پنبې د ستر توليدوونکوهېوادونوله ډلې څخه شمېرل کېږي. د پولاد جوړولو، نساجۍ، برېښنايي سامان آلاتو او خوړو موادو صنعت په دې هېواد کې ښه پرمختګ کړی دی. د دې هېواد مهم کانونه د ډبروسکاره، سره زر، مس ، يورانيم دي او د نفتو او طبيعي ګازو ښې زېرمې هم لري.

مهم صادرات يې پنبه،سره زر، سپېنسين او ورېښمين ټوکران، د برېښنا انرژي، معدني سرې، غذايي محصولات، ماشين آلات او داسې نور دي. واردات يې ماشين آلات، فلزي پرزه جات، د خوړو توکي، کيميايي محصولات او نور د اړتيا وړ توکي دي.

زموږ هېواد د ازبکستان له جمهوريت سره ديني، ژبني، فرهنګي، اقتصادي او سوداګريز دوستانه اړيکې لري. زموږ دهېواد سوداګريزې اړيکي له ازبکستان سره د حيرتان بندر له لارې ترسره کېږي.



## فعاليت

لاندې جدول په ډله ييز کار کې په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

| | مشهوره سيندونه | مشهور ښارونه | ژبه | دين | پايتخت | د ازبکستان موقعيت |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | | |



## ځواب ورکړئ

١- ازبکستان ولې نورو هېوادونو ته پنبه صادروي؟
٢- ازبکستان کې د صنعت کومو ډولونو ښه پر مختګ کړی دی؟ نومونه يې واخلئ.
٣- ازبکستان څه وخت خپلواک شو؟



## کورنۍ دنده

د ازبکستان نقشه په زير سره وګورئ او د مهمو ښارونو نومونه يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د ترکمنستان جمهوریت

## پوښتنه

**څه فکر کوئ، د ترکمنستان جمهوریت زموږ د هېواد په کومه خواکې موقعیت لري؟**

ترکمنستان هم د منځنۍ آسیا له هېوادونو څخه دی او زموږ د هېواد په شمال کې پروت دی. دا هېواد د شمال ختیځ له خوا د ازبکستان، د شمال له خوا د قزاقستان، دسوېل ختیځ له خوا د افغانستان او سوېل لوېدیځ له خوا د ایران له هېواد سره ګډه پوله لري. د ترکمنستان هېواد په ۱۳۷۰ لمریز کال کې له پخواني شوروي اتحاد څخه خپله خپلواکي تر لاسه کړه. د دې هېواد پراخوالی(۴۸۸۱۰۰) کیلو متره مربع دی. نفوس یې پنځه میلیونو تنو ته رسېږي. خلک یې مسلمانان دي او زیاتره یې په ترکمني او روسي ژبو خبرې کوي.




د ترکمنستان پلازمېنه دعشق آباد ښار دی او نور مشهور ښارونه یې ترکمن آباد(چارجو)، مرو، ترکمن باشي او نور دي.

د ترکمنستان اقلیم صحرایي دی. ۹۰ سلنه خاوره یې د قراقرم دښتې نیولې ده. د دې هېواد په لوېدیځ کې د اورښت اندازه ۴۰۰ میلي متره او په شمال کې له ۸۰ میلي

متروڅخه نه زیاتیږي. ترکمنستان ډېرې شاړې اوارې دښتې لري، نوځکه د منځنۍ آسیا د ډېره وچه سیمه ګڼل کېږي.

د دې هېواد مشهور سیندونه مرغاب، هریرود(تجن) اوآمو دي. د ترکمنستان دولت د آمود سیند د اوبو یوه برخه د ترکمن باشي د کانال په واسطه چې د آمو دسیند اوبه یې د مرغاب اوهریرود سیندونوسره نښلولي د هېواد سوېل ته غځولي چې له امله یې د پنبې پراخه کروندې منځ ته را وړې دي .

د دې هېواد خلک مسلمانان او زیاتره خلک یې د کرنې او مالدارۍ په چارو بوخت دي. د پنبې د حاصلاتو له پلوه نړیوال شهرت لري. مهمې لاسي صنعت یې دغالیو اوبدل دي. ترکمنستان د ګازو او نفتو بډې زېرمې لري. مهم صادرات یې: پنبه، سپنسین ټوکران، غالۍ، نفت، طبیعي ګاز، کیمیایي محصولات، د برښنا انرژي او د حیواني محصولاتو ډولونه دي. واردات یې ماشین الات، تجهیزات، نساجي، کیمیایي او د خوړو توکي او نور دي. زموږ هېواد د ترکمنستان له جمهوریت سره دیني، ژبني، فرهنګي، اقتصادي او سوداګریز دوستانه اړیکې لري. زموږ دهېواد سوداګریزې اړیکې ترکمنستان سره داقینې اوتورغندۍ د بندرونوله لارې عملي کېږي.



## فعالیت

لاندې جدول په دله ییز کار کې په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

| صنایع | مشهوره سیندونه | مشهور ښارونه | ژبه | دین | پایتخت | د ترکمنستان موقعیت |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| | | | | | | |

## ځواب ورکړئ

۱- د ترکمنستان د زیاتره خلکو شغل څه شی دی؟
۲- د ترکمنستان د صادراتي توکو نوموونه واخلئ.
۳- د ترکمنستان مشهور سیندونه کوم دي؟

## کورنۍ دنده

د ترکمنستان نقشه په زیر سره وګورئ او د مهمو ښارونو نوموونه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د چین د خلکو جمهوریت

## پوښتنه

نقشې ته وګورئ او د چین ګاونډي هېوادونه پیدا کړئ.




د چین ولسي جمهوریت د آسیا د لویې وچې په ختیځ او د آرام سمندر په لوېدیځ کې د (۹۵۷۲۹۰۰) کیلو متره مربع په پراخوالي د آسیا د لویې وچې ډېر پراخ او د نړۍ درېیم ستر هېواد دی او زموږ له هېواد سره په شمال ختیځه برخه (واخان) کې ګډه پوله لري. د شمال له خوا په مغولستان، د شمال ختیځ له خوا په روسیې، د ختیځ له خوا د شمالي کوریا، ژېړسمندرګي، د ختیځ چین سمندرګي، د سوېل له خوا د سوېلي چین سمندرګي، ویتنام، لائوس، میانمار(برما)، هند، بوتان، نیپال، د لوېدیځ له خوا په هند، پاکستان، افغانستان، تاجکستان، قرغزستان او شمال لوېدیځ له خوا د قزاقستان له هېواد سره ګډه پوله لري.

چین د نړۍ زیات نفوس لرونکی هېواد دی چې د نفوسو شمېر یې په ۲۰۱۱م. کال کې یو ملیارد او درې سوه پنځوس ملیونو تنو ته رسېده. د چین د خلکو دین بودیزم، کنفیسیوس، اسلام او نور دی. د سکیانګ په ایالات کې اکثریت خلک یې مسلمانان دي. پلازمېنه یې پیکنګ (بیجن) او مشهور ښارونه یې شانګهاي، چنګتو، هاربین، هانګ کنګ او نوردي. رسمي ژبه یې چینایي ده. د چین د هېواد کرنیز محصولات وریژې، غنم، وربشې، پنبه، چغندر او داسې نوردي. مهم کانونه یې د ډبروسکاره، اوسپنه، بوکسیت(المونیم)، قلعي، مګنیزیم، جست او نور دي، د نفتو او طبیعي ګازو ښې زېرمې هم لري.

په دې هېواد کې د موټر جوړولو، بېړۍ جوړولو، ټوکر جوړولو، کرنیزو ماشین آلاتو، د برېښنايي سامان آلاتو، او پلاستیکي لوښو صنعت زیات پر مختګ کړی دی.

چین د نړۍ دسترو صنعتي هېوادونو له ډلې څخه دي چې تقریباً د نړۍ ټولو هېوادونو ته ډول ډول توکي صادروي. مهم صادرات یې برېښنايي سامان آلات، ماشین آلات او پرزه جات، جامې، بوټان، نفتي توکي، پلاستیکي توکي، فولاد، چیني لوښي او داسې نور دي. واردات یې پرمختللې تکنالوژي، برښنايي ماشین آلات، اومه صنعتي توکي، نفت او داسې نور د اړتیا وړ شیان دي.

چین د خپلې پراختیا او سمندر ته د نږدې والي او لیرې والي د سیمو له کبله څو ډوله اقلیم لري. شمالي برخې یې سوړ ژمی او معتدل اوړی لري. سویلي سیمې یې معتدل ژمی، اوږد تود او مرطوب اوړی لري ، ختیځې برخې یې سمندري تود نمجن اقلیم او لوېدیځې برخې یې وچ اقلیم لري. د چین ډېر اوږده سیندونه د یانګ تسه کیانګ او هوانګهو دي. او نامتو غرونه یې همالیا، کونلون، تیانشان او نور دي.

افغانستان له چین سره دوستانه اړیکې لري. هغه هېواد ته پنبه، وړۍ، پوستکي او وچه مېوې صادروي او له هغه هېواد څخه چای، منسوجات، تعمیراتي توکي، کاغذ، پلاستیکي لوښي، راډیو، ټیپ ریکاردر، تلویزیون، کمپیوټر، ماشین آلات او داسې نور، واردوي.



## فعالیت

لاندې جدول په ډله ییز کار کې په خپلو کتابچو کې بشپړ کړئ.

| هغه توکي چې د چین له هېواد څخه زموږ هېواد ته راوړل کېږي. | مشهورښارونه | ژبه | کرنیز حاصلات | پلازمېنه | د چین جمهوریت موقعیت |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | | | |



## ځواب ورکړئ

۱- د چین آب و هوا په ژمي کې څنګه دی؟
۲- چین ته زموږ د هېواد صادرات څه شی دي؟
۳- موږ له چین څخه کوم شیان هېواد ته راواردوو؟



## کورنۍ دنده

د چین نقشه په ځیر سره وګورئ او د مهمو ښارونو نومونه یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# دریم څپرکی: سوله او ملي یووالي

**د څپرکي موخې:**

- د ملي یووالي په مفهوم پوه شي.
- د امنیت او سولې په اړیکه پوه شي.
- رسنیز اخلاق وپېژني.
- د ملکیتونو د ساتنې لارې چارې تشریح کړای شي.
- د ماشومانو حقونه توضیح کړای شي.
- د انسان کرامت ته درناوی او د قانون له پلي کولو سره لیوالتیا پیداکړي.

اتلسم لوست

## ملي یووالی

**پوښتنه**: ستاسې په آند، د یوه هېواد خلک ولې ملي یووالي ته اړتیا لري؟




ملي یووالی، د یوې ټولنې د خلکو اتحاد او یو موټې توب ته وايي چې په ملي پېښو، قضیو او د هېواد او دولت د دفاع لپاره سره متحد وي. د اسلام سپېڅلې دین د افغانستان د خلکو د ملي یووالي بنسټ دی. الله(جَلَّ جَلاَلُه) مسلمانانو ته د یووالي او له اختلاف او تفرقې څخه د لرې والي امر کړی دی. د خلکو یووالی د یوې ښې ټولنې ځانګړتیا ده. موږ ټول مسلمانان یو او پر یوه

خدای (جَلَّ جَلاَلُه) عقیده لرو، پیغمبر مو یو، آسماني کتاب مو یو او قبله مو یوه ده. له دې کبله باید یو له بل سره متحد او د ورورګلوۍ په فضا کې ژوند وکړو او د هېواد د آبادۍ او پرمختګ لپاره هڅه او کوښښ وکړو.

ملي یووالی زموږ د خلکو اړتیا ده. په یووالي او سولې سره په هېواد کې امنیت ټینګیدای شي. په آرامه فضا کې د خلکو لپاره د تعلیم، کار او هوساینې لار هواریږي.



## فعالیت

په ډلو کې د ملي یووالي په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- ملي یووالی څه ته وايي؟
۲- خدای (جَلَّ جَلاَلُه) مسلمانانو ته د یووالي په باره کې څه امر کړی دی؟
۳- ملي یووالی څه ګټې لري؟



## کورنۍ دنده

د ملي یووالي د ګټو په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# سوله او امنیت

**پوښتنه**

**ستاسې په آند، سوله له امنیت څخه پرته امکان لري؟**



**امنیت د سولې په فضا کې منځته راځي، یوازې په هغې ټولنه کې چې سوله ټینګه وي، خلک یې په روغه جوړه کې ژوند کوي، د امنیت د ټینګښت امکان ډېر وي. نو سوله او امنیت یو له بل سره ملګري دي. د سولې او امنیت ترسیوري لاندې د انسان کرامت ساتل کېږي، د انسانانو حقوق لاسته ورځي او په ټولنه کې عدالت راځي. له دې کبله سوله د ټولنې آرامه فضا ده چې په هغې کې مصونیت، عدالت او خپلواکي د ټولنې د خلکو په مرسته منځته راځي.**

**د مصؤونیت معنا په امن کې ژوند کول دي، یعنې که چیرته امن نه وي، د**

انسان ژوند له خطر سره مخامخ کيږي.

عدالت، برابرۍ او انصاف ته وايي، کله چې برابري او انصاف شتون ولري د انسانانو اړيکې سره ښې وي، يو له بل سره مرسته کوي او ترمنځه يې برابري راځي.

خپلواکي، خپلواک ژوند کولو او آزاد کار کولو ته وايي.

خپلواکي بايد د اسلام او قانون په چوکاټ کې وي، ترڅو نورو ته د ستونزو لامل نه شي، ډېر جنايتونه، ګډوډۍ، ناامنۍ او بې عدالتۍ د سولې له نه موجوديت څخه منځته راځي. د صلحې په فضا کې د هېواد ځوانان زده کړو او علمي پرمختګونو ته لاس رسی پيداکوي. په ټولنه کې د حق او عدالت راوستل سولې او امنيت ته اړتيا لري.



## فعاليت

په ډلو کې د سولې او امنيت په اړه سره خبرې وکړئ



## ځواب ورکړئ

۱- سوله او امنيت يو له بل سره څه اړيکه لري؟

۲- سوله څه ته وايي؟

۳- امن (مصؤونيت) څه شی دی؟



## کورنۍ دنده

د سولې د اهميت په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# عامه ملکیت

**پوښتنه**

**ستاسو په آند، عامه ملکیت کومو شیانو ته ویل کېږي؟**



**عامه ملکیت ځمکې، غرونو، دښتو، ځنګلونو، دولتي فارمونو، پارکونو، سړکونو، کانونو، طبیعي زېرمو، فابریکو، دولتي بنسټونو، تعلیمي او خدمتي موسسو، لرغونو آثارو او داسې نورو ته وايي.**

**لرغوني آثار، د یوه ملت د فرهنګي شتمنیو، د نیکونو د یادګارونو او د ملي ویاړونو یوه مهمه برخه ده. هېڅوک حق نه لري چې د هېواد تاریخي او لرغوني آثار لکه: ودانۍ، برجونه، مناورنه او داسې نور وران او له منځه یوسي. د اسلام**

شریعت او د دولت قوانین هیچاته حق نه ورکوي، هغه ځمکې چې په ملت پورې اړه لري غصب کړي. په مرکز او ولایاتو کې د ځمکې او کورونو وېشل د دولت له خوا د قانون او ښاري پلان سره سم ترسره کېږي. هیڅوک حق نه لري چې عامه ملکیت غصب کړي او شخصي ګټه ترې واخلي.

موږ باید عامه ملکیت وساتو او له هغې څخه د شخصي ګټې لپاره استفاده ونه کړو.



## فعالیت

په ډلو کې د عامه ملکیت په اړه سره خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- عامه ملکیت کومو شیانو ته وایي؟

۲- د غاصبانو په وړاندې د دولت دنده څه شی ده؟

۳- آیا لرغونو آثارو ته عامه ملکیت ویلی شو؟



## کورنۍ دنده

د غاصبانو په وړاندې زموږ مسوولیت څه دی؟ په دې اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# رسنیز اخلاق

## پوښتنه

ستاسې په آند، رسنیز اخلاق څه اهمیت لري؟




ورځپاڼه، مجله، راډیو، تلویزیون، انټرنټ او داسې نورو ته رسنۍ وايي. رسنۍ د اطلاعاتو، پیامونو او معلوماتو د لېږد وسیله ده.

رسنیو د نړۍ د خلکو پر فکرونو ډېره اغیزه اچولې او د ټولنو په ښه والي او اصلاح کې مهم رول لري، هغه آداب او ارزښتونه چې رسنۍ يې باید په خپلو خپرونو کې په پام کې ونیسي، رسنیز اخلاق ورته ویل کیږي. هغه موضوع ګانې چې باید په رسنیزو اخلاقو کې مراعات شي دا دي: ربښتینولي، د معلوماتو او خبرونو سمون، برابري، امانت او له هغو کړنو څخه ډډه چې د اسلامي ارزښتونو او ملي ګټو پرضد وي.

د هېواد رسنۍ باید هڅه وکړي چې د لاندنیو مطالبو له خپرونو څخه ډډه وکړي:

• هغه مطالب چې د اسلام د دین له احکامو سره مغایر او نورو ادیانو او

مذاهـــبو ته سپکاوی وي.

• د داسې مطالبو خپرول چې د اشخاصو د سپکاوي، شرمولو، تورنولو او داسې نورو لامل شي، د تاوتريخوالي، جګړې او داسې نورو مطالبو تبليغ چې د اسلام د دين د ارزښتونو او د اساسي قانون د احکامو مخالف او د جـزا قانون هـغه جرم ګڼلی وي.

• د داسې خپرونو نشر او خپرول چې د ټولنې د وګړو او په ځانګړې توګه د ماشومانو او تنکيو ځوانانو اخلاقي سلامتيا ته زيان رسوي.

د هېواد د رسنيو په خاصه توګه د تلويزيون، کيبلي شبکې او انټرنټ دنده داده چې داسې موضوع ګانې نشر او تبليغ کړي چې خلک ملي او اسلامي پيوستون ، نېکو اخلاقو او د نورو د حقونو درناوی ته وهڅوي. د خلکو او ملتونو ترمنځ اتحاد او يووالی منځته راولي او په خلکو کې د سولې ، ترقۍ او يو تر بله د مرستې کولو ذهنيت روښانه کړي. ځوانان ښوونې او روزنې او لوړو زده کړو ته وهڅوي، ترڅو زموږ هېواد د پرمختګ لوړو پوړونو ته ورسېږي. موږ بايد د رسنيو د ګټورو او علمي برنامو څخه ګټه واخلو.



## فعاليت

په ډلو کې د رسنيزو اخلاقو په اړه سره خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- رسنۍ څه شی ده؟

۲- کومو موضوع ګانو ته رسنيز اخلاق ويل کېږي؟

۳- رسنۍ بايد کوم مطلبونه خپاره نه کړي؟



## کورنۍ دنده

رسنۍ څه اهميت لري، په دې اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د انسان کرامت

**پوښتنه**

**ستاسې په آند، د انسان کرامت څه ته وايي؟**



انسان د عزت څښتن دی او حق لري چې په ټولنه کې په درناوی ژوند وکړي، هیڅوک حق نه لري چې په خبرو او کړنو د هغه حیثیت تر پښو لاندې کړي. انسانان، ښځې دي که نارینه، مشران دي که ځوانان، فقیر وي او که شتمن، معلول وي او که جوړ، ټول د درناوی وړ دي.

د خلکو د حیثیت او مقام ساتنه باید د ارګانونو، سازمانونو، د اجتماعي او خدماتي بنسټونو په پلانونو او طرحو کې په نظر کې ونیول شي. یعنې د هغوی لومړنۍ اړتیاوې، په تصمیم نیولو کې آزادي او د هغوی روحي او ټولنیز امنیت خوندي شي.

په کومه ټولنه کې چې د انسان حقونه او کرامت مراعات شي خلک یې هوساینې

او برياليتوب ته رسيږي، ټولنيز مصيبتونه، فقر او نورې انساني ستونزې کمېږي.
ټول انسانان خپلواک نړۍ ته راځي او داسې حقوق لري چې نه شو کولای هغوی له خپلو حقونو څخه محروم کړو، څرنګه چې انسان په ټولنه کې د دولت تر سيوري لاندې ژوند کوي، نو حکومت دنده لري چې د هغوی د حقونو او انساني کرامتونو درناوی او ساتنه وکړي. څرنګه چې د اساسي قانون په يوه ماده کې راغلي دي: «د انسان آزادي او کرامت له ګواښ څخه مصؤون دي. دولت د انسان د درناوی، آزادی او د کرامت په ساتنه کې مکلف دی».
ټولنه هغه وخت پرمختګ کوي چې د ټولو انسانانو انساني کرامت ته درناوی وشي.



## فعاليت

په ډلو کې د انسان د حقونو او کرامت په اړه خبرې سره وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د انسان د کرامت معنا څه ده؟

۲- حکومت د انسان د حقونو او کرامت د ساتلو په وړاندې څه مسووليت لري؟

۳- څرنګه کولای شو يو تر بله انساني کرامت ځنګه مراعاتولی شو؟



## کورنۍ دنده

د انسان د کرامت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د قانون رعایت

**پوښتنه**

**ستاسې په آند، د قانون رعایت څه ګټه لري؟**




**ستاسې په ښوونځي کې هر څوک یوه ځانګړې دنده لري؛ د بېلګې په توګه، ښوونکی د مهال وېش له مخې زده کوونکو ته لوست وايي. د ښوونځي مدیر او سرښوونکي د لایحې له مخې خپلې دندې ترسره کوي. تاسې د ښوونځي د نظم د ساتلو لپاره باید ځینې مقررات مراعات کړئ:**

- **په ټاکلي وخت په ښوونځي کې حاضرو اوسئ.**
- **د لوست پرمهال ښوونکي ته ځیر شئ.**

• د ښوونکي له اجازې پرته له ټولګي څخه ونه وځئ.

په ښوونځي کې د مقرراتو نه مراعتول د بې نظمۍ لامل کېږي.

همدارنګه، که په ټولنه کې قانون پلی او مراعات نشي ټولنه د ګډوډۍ خواته ځي، نا امني او جرمونه منځته راځي.

قانون ځکه اهمیت لري چې له موږ سره مرسته کوي او موږ ساتي.

دولت او خلک مکلف دي چې قانون پلی او مراعات کړي، چې خلک په امن او امنیت کې ژوند وکړي.



## فعالیت

په ډلو کې د قانون د رعایتولو په اړه سره خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د ښوونځي د قوانینو او مقرراتو څو بېلګې بیان کړئ.

۲- انسان له قانون څخه پرته ژوند کولای شي؟

۳- د قانون اهمیت بیان کړئ.



## کورنۍ دنده

که قانون په ټولنه کې رعایت نشي څه به پېښ شي؟ په دې اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د ماشومانو حقونه

**پوښتنه**

**ستاسې په فکر، ټولنې ته روغ ماشومان څنګه وړاندې کولی شو؟**



**انسان د ماشومتوب په پړاو کې له هر وخت څخه ډېرې څارنې، مرستې او ملاتړ ته اړتيا لري. ماشوم د ژوند په لومړيو کې له هغو پېښو څخه چې د ده ځان په خطرکې اچوي، بې خبره وي. مشران او په ځانګړي توګه د ماشوم مور او پلار، له هغو ناروغيو او خطرونو څخه چې د ماشوم ژوند ګواښوي، د ساتنې مسؤوليت لري.**

**ماشومان،زوی وي يا لور، برابر حقونه لري او هيڅوک نشي کولای چې د هغوی په وړاندې له تاوتريخوالي او بې رحمۍ څخه کار واخلي. ماشومان بايد**

د ښوونې، روزنې، محبت، تفریح او د څارنې او ساتنې له حقونو څخه برخمن وي، ترڅو په راتلونکې کې یو سالم او ښه شخصیت ترې جوړ او هېواد ته د خدمت وړ شي.

د اسلام سپیڅلي دین د ماشومانو پر حقونو ډېر پام او ټینګار کړی دی. اسلام ماشوم ته د حقوقي او بشري کرامت له نظره د یوه لوی انسان په سترګه ګوري، له دې کبله پکار ده چې د اسلام د دین د احکامو او ارزښتونو سره سم د ماشوم حقونو ته پاملرنه وکړو او په دې لاره کې د اسلام د سپېڅلي دین لارښوونې په پام کې ونیسو.

الله (جَلَّ جَلاَلُه) د کهف د سورې په (۴۶) آیت کې فرمایلي دي: « مال او اولادونه د دنیوي ژوند ښایست او ښکلا ده». د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د ماشومتوب نړۍ د جنت په څېر ګڼلې او فرمایي: « ماشومان د جنت پتنګان دي.»



## فعالیت

په ډلو کې د ماشوم د حقونو په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د ناروغیو او خطرونو په وړاندې د ماشوم د ساتنې په لومړني سر کې څوک دي؟

۲- د ماشومانو حقونه کوم دي؟

۳- الله (جَلَّ جَلاَلُه) د ماشومانو په اړه څه فرمایلي دي؟



## کورنۍ دنده

د ماشومانو د حقونو په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د ښځو حقونه

## پوښتنه

ستاسو په فکر، ښځې کوم حقونه لري؟

رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمايلي دي: له تاسو ښخه ښه او غوره کس هغه دی چې له خپلې مېرمنې سره ښه چلند کوي او زه هم له خپلې مېرمن سره ترهرچا ښه چلن کوم. بل ځای فرمايي: له الله (جَلَّ جَلاَلُه) ښخه وويرېږئ او پر ښځو ظلم مه کوئ. ښځې هم د نارينه وو په څير د الله (جَلَّ جَلاَلُه) بنده ګانې دي، د الله(جَلَّ جَلاَلُه) پر وړاندې يوشانته مسؤوليتونه لري او د قانون په وړاندې هم يوشان دي.



د ښځو مهم حقونه دا دي:

- نوم: د هر ماشوم (هلک يا نجلۍ) لومړی حق پر هغه د ښه نوم ايښودل دي.
- روزنه او پالنه: د ماشومې لور او زوی مهم حق د هغې ښه پالنه او روزنه ده، رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمايلي دي: چاچې خپلو لوڼو ته ښه روزنه او پالنه ورکړه، د هغه ځای جنت دی.
- تعليم: حکومت او کورنۍ بايد د نجونو تعليم ته ځانګړې پاملرنه وکړي، ترڅو په آسانۍ سره وکولای شي پوهه تر لاسه کړي. رسول الله (صلي الله عليه وسلم) فرمايي: علم په هر مسلمان او مسلمانې ښځې فرض دی.

- **واده**: هره لور د اسلام له اصولو سره سم د واده حق لري، د اسلام مبارک دین د ښځو خرڅول، په بدو کې ورکول او له خوښې پرته ودول يې منع کړي او ناروا عمل يې ګڼلی دی.
- **نفقه**: هره ښځه په خپل خاوند د هغه د وس سره سم د نفقې حق لري.
- **کار**: هره ښځه د اسلام له اصولو سره سم د کار کولو حق لري.
- **میراث**: هره ښځه د میراث حق لري.
- **انتخاب**: هره ښځه د انتخابېدلو حق لري او هم د خپلې خوښې کاندید ته رأیه ورکولای شي.

ښځه د درناوي وړ ده او هېڅوک ورسره د بد چلند حق نه لري، که چېرې موږ له ښځو سره ښه چلند وکړو بې له شکه به ښه کورنۍ او سالمه ټولنه ولرو.



## فعالیت

په ډلو کې د ښځو د حقونو په اړه بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- رسول الله (صلي الله علیه وسلم) د ښځو په اړه څه ویلي دي؟

۲- د ښځو د ځینو حقونو نومونه واخلئ.

۳- د ښځو د تعلیم په اړه رسول الله (صلي الله علیه وسلم) څه فرمايلي دي؟ بیان يې کړئ.



## کورنۍ دنده

د ښځو د ښوونې او روزنې په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

**د څپرکي موخې:**

- له ۱۳۵۲څخه تر ۱۳۸۰ لمریز کلونو پېښو سره پیژندګلوي پیدا کړي
- د بُن د غونډې په اړه معلومات ترلاسه کړي
- لنډ مهاله اداره او انتقالي دولت سره جلا کړای شي
- د انتخاباتو په مفهوم پوه شي
- د هېواد پارلماني جوړښت تشریح کړای شي
- د بېړنۍ لویې جرګې په مفهوم پوه شي
- د هېواد د بیا رغونې سره لیواله شي

شپږویشتم لوست

# له ۱۳۵۲ څخه تر ۱۳۷۱ پورې د افغانستان پېښو ته یوه لنډه کتنه




**پوښتنه:** څه فکر کوئ، چې د افغانستان لومړني ولسمشر څوک و؟

د ۱۳۵۲ لمریز کال د چنګاښ له میاشتې څخه وړاندې په افغانستان کې مشروطه شاهي نظام و چې وروستنی ټولواک یې محمد ظاهر شاه و.

د ۱۳۵۲ لمریز کال د چنګاښ په ۲۲ مه نېټه سردار محمد داوود خان د یوې کودتا په ترڅ کې د چارو واګې په لاس کې ونیولې او د شاهي نظام پر ځای یې جمهوري نظام اعلان کړ. محمد داوود خان د ۱۳۵۷ لمریز کال د ثور (غویي) تر میاشتې پورې د افغانستان ولسمشر و.

د ۱۳۵۷ لمریز کال د ثور د میاشتې په اوومه نېټه نور محمد تره کي د یوې نظامي کودتا په ترڅ کې د چارو واګې په لاس کې واخیستې او د خپل رژیم نوم یې د افغانستان د خلق دموکراتیک جمهوریت کېښود. نور محمد تره کی د ۱۳۵۸ لمریز کال د وږي تر میاشتې پورې د دولت په مشرتابه کې پاتې شو او په ګوند کې دننه د راولاړ شوي اړو دوړ په پایله کې د حفیظ الله امین په دستور ووژل شو.

حفیظ الله امین د ۱۳۵۸ لمریز کال د وږي له میاشتې څخه د همدغه کال د مرغومي تر میاشتې پورې د دربوو میاشتو او څو ورځو لپاره د افغانستان د خلق

د دموکراتیک جمهوریت د انقلابي شورا د مشر په توګه د چارو واګې په لاس کې درلودې. د حفیظ الله امین حکومت د ۱۳۵۸ لمریز کال د مرغومي د میاشتې په شپږمه د وخت د شوروي اتحاد د پوځ په مستقیم یرغل له منځه یوړل شو.
د ۱۳۵۸ لمریز کال د مرغومي په شپږمه د وخت د شوروي اتحاد سرو لښکرو ببرک کارمل له له ځانه سره راووست او هغه یې د انقلابي شورا د رئیس په توګه وټاکه. ببرک کارمل هم د خپل حزب د سیاستونو تطبیقولو ته ادامه ورکړه او د ۱۳۶۵لمریز کال د غویي تر میاشتې پورې په واک کې پاتې شو.
په شوروي اتحاد کې د سیاست د بدلون په راتګ سره ببرک کارمل له واک څخه ګوښه او ډاکټر نجیب الله د هغه پر ځای واک ته ورسید.
ډاکټرنجیب الله د ۱۳۶۵ لمریزکال د غویي له میاشتې څخه د ۱۳۷۱ لمریز کال د وري تر میاشتې پورې د افغانستان د دولت چارې په واک کې درلودې.



## فعالیت

په ډلو کې د ښي لورې جملې له کیڼ لورې جملو سره داسې ونښلوئ چې د هغو بشپړه معنا لاس ته راشي.

| | |
|---|---|
| -محمد داود خان | - د افغانستان لومړنی ولسمشر و. |
| -د ۱۳۵۷ لمریز کال د کودتا په پایله کې | -ډاکټر نجیب الله زموږ د هېواد ولسمشر و. |
| -د ۱۳۶۵ څخه تر ۱۳۷۱ لمریز کال پورې | - نور محمد تره کي واک ترلاسه کړ. |



## ځواب ورکړئ

۱- د پخواني شوروي لښکرو کوم کال زموږ په هېواد یرغل وکړ؟
۲- د حفیظ الله امین حکومت چا له منځه یووړ؟
۳- محمد ظاهرخان ته د افغانستان وروستنی شاه ولې ویل کېږي؟



## کورنۍ دنده

په جمهوریت باندې د شاهي نظام د بدلیدو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# له ۱۳۷۱ څخه تر ۱۳۸۰ لمریز کاله پورې د افغانستان پېښو ته یوه لنډه کتنه

**پوښتنه**

څه فکر کوئ چې د پخواني شوروي اتحاد سور لښکر زموږ له هېواد څخه څرنګه وایستل شو؟

کله چې د نور محمد تره کي په مشرۍ د افغانستان د خلق دموکراتیک جمهوریت چې د پخواني شوروي اتحاد له ملاتړ څخه برخمن و رامنځته شو، چې د اسلام د دین سره یې دښمني درلوده او د هېواد د بچیانو په وژلو او سکنجه کولو یې پیل وکړ د هېواد د متدینو خلکو جهاد د حاکم رژیم پر ضد پیل شو او وروسته له هغه چې زموږ پرخاوره، د شوروي اتحاد پوځي ځواکونو یرغل وکړ، د خلکو جهاد زور واخیست.

د شوروي سور لښکر چې د افغانستان د خلکو له کلک مقاومت سره مخ شو، له کلونو جګړو او ورانیو څخه وروسته د افغانستان پرېښودو ته اړ شو چې په پایله کې سور پوځ د ډېرو تلفاتو او درنو زیانونو د لیدو له امله د ۱۳۶۷ لمریز کال د سلواغې په ۲۶ مه نېټه له افغانستان څخه ووت. د پخواني شوروي اتحاد د پوځونو له وتلو وروسته، مجاهدینو د ډاکټر نجیب الله له رژیم سره هم مخالفت ښکاره کړ او خپل جهاد او مبارزو ته یې دوام ورکړ او د هغه رژیم یې د پخواني شوروي پلوي وګاڼه. د وخت د شوروي اتحاد د لښکرو تر وتلو وروسته د نجیب الله حکومت درې کاله نور هم دوام وکړ، تر هغه چې مجاهدین کابل ته راننوتل او د ۱۳۷۱ لمریز کال د غویي په اتمه نېټه یې سیاسي واک تر لاسه کړ. د ۱۳۷۱ لمریز کال د غویي (ثور) په اتمه پروفیسور حضرت صبغت الله مجددي د پېښور د پریکړې په اساس د یوې لنډ مهالې دوه میاشتنۍ دورې لپاره د افغانستان د اسلامي دولت مشرتوب په غاړه واخیست.

د حضرت صبغت الله مجددي د دوه میاشتنۍ لنډ مهالې دورې له بشپړیدو وروسته

د ۱۳۷۱ لمریز کال د چنګاښ (سرطان) په میاشت کې استاذ برهان الدین رباني د افغانستان د اسلامي دولت مشرتوب ترلاسه کړ. نوموړي د خپل حکومت په دوره کې دنده درلوده چې د آزادو او هر اړخیزو ټاکنو زمینه برابره کړي، خو د هغه مهال د ستونزمنو شرایطو او د مجاهدینو ترمنځ د جګړو د دوام له امله، د دې کار په ترسره کېدو بریالی نه شو او د ۱۳۷۵ لمریز کال د تلې تر میاشتې پورې یې خپل حکومت ته دوام ورکړ.

د ۱۳۷۵ لمریز کال د تلې په میاشت کې د طالبانو د تحریک په لاس د کابل د ښار د نیولو وروسته ملا محمد عمر مجاهد واک ته ورسید او د افغانستان اسلامي امارت یې اعلان کړ. نوموړي د ۱۳۸۰ لمریز کال په لړم (عقرب) میاشت کې له واکه لرې شو او د هېواد په سیاسي تاریخ کې نوې پاڼه پرانیستل شوه.



## فعالیت

په ډلو کې د ښي لورې جملې له کیڼ لورې جملو سره داسې ونښلوئ چې صحیح مفهوم ورکړي.

| | |
|---|---|
| -حضرت صبغت الله مجددي | - د طالبانو پرمهال د افغانستان د دولت نوم و. |
| -د ۱۳۷۱ لمریز کال د چنګاښ په میاشت کې | - استاذ برهان الدین رباني واک ته ورسید. |
| -د افغانستان اسلامي امارت | - د مجاهدینو د حکومت لومړنی مشر و. |



## ځواب ورکړئ

۱- په افغانستان کې د خلکو د جهاد لاملونه څه وو؟
۲- استاذ برهان الدین رباني په کوم کال واک ته ورسید؟
۳- کابل په کوم کال د طالبانو لاس ته ولوید؟



## کورنی دنده

د افغانستان د خلکو د جهاد په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# په هېواد کې د دريو وروستيو لسيزو د پېښو او بدلونونو پايلې

## پوښتنه

ستاسو په فکر، زموږ په هېواد کې د جګړو او ورانيو لاملونه څه وو؟

زموږ هېواد د درې لسيزو (له ۱۳۵۲ څخه تر ۱۳۸۰ لمريز کال) په اوږدو کې د سياسي بدلونونو او د بېلابېلو رژيمونو د تجربو شاهد و. دا بدلونونه او ناآرامۍ زموږ د خلکو د بدبختيو او د هېواد د ورانېو لامل وګرځېدل.

-کابو دوو ميليونو وګړو خپل ژوند له لاسه ورکړ او زموږ ډېر هېوادوال معلول شول.

- د پنځو ميليونو په شاوخوا کې وګړي د خپل وطن پرېښودو او مهاجرت ته اړ شول.

- ښارونه او کلي ويجاړ او يا ډېر زيانمن شول.

- دولتي ودانۍ، سړکونه، پلونه، فابريکې، کرنيز او د اوبو لګولو تأسيسات، د اوبو او برښنا شبکې، د روغتيايي خدمتونو مرکزونه او ترانسپورتي سيستم يا خو وران او يا هم ډېر زيانمن شول.

- د هېواد تاريخي آثار او کلتوري ارزښتمن ميراثونه، لکه: موزيمونه او تاريخي آبدات ويجاړ او يا خو تر ډېره حده زيانمن شول.

-د هېواد اقتصادي او ټولنيز پرمختګ په ټپه ودريد.

- خلک له ستونزو، لکه: بيکاري، ولږه او بې وزليو سره مخامخ شول.

- جنګي او اخلاقي جرمونه ډېر شول او د خلکو بنسټيز او مدني حقونه تر پښو

لاندې شول.

- ډېر عالمان او ښوونکي په شهادت ورسيدل.
- د ډېرو ښوونځيو ودانۍ يا خو ورانې او يا هم زيانمنې شوې.
- د ښوونې او روزنې د کيفيت کچه راټيټه شوه.

د هېواد په ډېرو سيمو کې د ماشومانو او ځوانانو لاس ښوونځي، ښوونې او روزنې ته نه رسېد او ډېر خلک نالوستي پاتې شول.

له دې امله اړينه ده چې افغانان په اتحاد او اتفاق سره ملي وحدت پياوړى کړي او د پوهې په تر لاسه کولو د جګړې ورانې او ويجاړې ببرته ودانې او افغانستان پر يوه پرمخ تللي هېواد بدل کړي.




په ډلو کې د لاندنيو موضوعاتو په اړه خبرې وکړئ:

- په افغانستان کې د جګړې تاوانونه.
- د سولې اويووالي ګټې




۱- زموږ هېواد په کورنيو جګړو کې کوم تاوانونه وکړل؟

۲- زموږ د هېواد د جګړو د دوام لاملونه څه وو؟

۳.- د هېواد د آبادۍ او پرمختګ لپاره څه بايد وکړو؟




په دې اړه چې شو د خپل هېواد ورانۍ څنګه ودانې کړو؟ خپلو کتابچو کې څو کرښې وليکئ.

# د بُن غونډه

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، د بُن غونډه ولې جوړه شوه؟**



**په افغانستان کې د شخړو د له منځه وړلو، د ملي روغې جوړې د پلي کولو، د تلپاتې سولې د راوستلو، د بشري حقونو د رعايتولو او د يوه پراخ بنسټه ملي حکومت د جوړولو په موخه، د افغانانو د بېلابېلو سياسي ډلو استازي د ۱۳۸۰ لمريز کال د ليندۍ په مياشت کې د آلمان د بُن په ښار کې، سره راغونډ شول. په پای کې دغه غونډه د ملګرو ملتونو د استازي الاخضر الابراهيمي تر مشرۍ لاندې جوړه او له ډېرو خبرو اترو وروسته لاندې پريکړو ته ورسېدل:**

**- د شپږو مياشتو لپاره د لنډ مهالي اداري جوړول.**

**- د بېړنۍ لويې جرګې پرانيستل او د ۱۸ مياشتو لپاره د "انتقالي" حکومت جوړول**

چې په دې موده کې به اساسي قانون تدوين، ټاکنې به تر سره او انتخابي حکومت به جوړ شي.

- د امنيت د راوستلو په موخه په افغانستان کې د نړيوالو ځواکونو استقرار او ځای پر ځای کېدل.

- د نړېوالې ټولنې په مرسته د افغانستان بيا رغاونه.

- له ټولو هېوادونو، په تېره بيا له ګاونډيو هېوادونو، سره د افغانستان د حکومت د دوستانه اړيکو ټينګښت.



## فعاليت

په ډلو کې د بُن د غونډې په اړه خبرې وکړئ



## ځواب ورکړئ

۱- د بُن غونډه د کومو موخو لپاره جوړه شوه؟

۲- د بُن غونډه له کومو ډلو څخه جوړه شوې وه؟

۳- د بُن په غونډه کې لنډ مهاله اداره او انتقالي حکومت د څه مودې لپاره تصويب شوي وو؟



## کورنۍ دنده

د بُن د غونډې د پرېکړو په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# لنډمهاله اداره

## پوښتنه

څه فکر کوئ چې لنډ مهاله اداره څرنګه رامنځته شوه؟



څنګه چې په تېر لوست کې مو ولوستل، د ۱۳۸۰ لمریز کال د لیندۍ (قوس) په میاشت کې د ملګرو ملتونو په مشرۍ د آلمان په بُن ښار کې د افغانانو تر منځ د سولې خبرې پیل شوې او د حامد کرزي تر مشرۍ لاندې د افغانستان د لنډ مهالې ادارې په جوړېدلو پای ته ورسېدې.

د ۱۳۸۰ لمریز کال دجدي په لومړۍ نېټه د استاد برهان الدین رباني په مشرۍ له

اسلامي دولت څخه د ښاغلي حامد کرزي په مشرۍ لنډ مهالي ادارې ته واک رسماً ورولېږدید او نوې کابینې کار پیل کړ.

په دې دوره کې د نجونو او هلکانو پر مخ د ښوونځیو، مدرسو او پوهنتونونو دروازې پرانیستل شوې او ښځې په دولتي ادارو کې له کارکولو او زده کړو څخه برخمنې شوې. د ۱۳۴۳ لمریز کال اساسي قانـون د بُن د تړون لیک په اساس داجرا وړ شو. غیر دولتي موسسو خپل دفترونه په کابل کې پرانیستل او د هېواد بیا رغونه پیل شوه.



## فعالیت

په دې اړه چې ولې لنډ مهاله اداره رامنځته شوه؟ په ډلو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- په افغانستان کې د لنډمهالي کابینې چارې څه وخت او د چا په مشرۍ پیل شوې؟
۲- د افغانستان د اسلامي دولت واک له چا څخه حامد کرزي ته ولېږدول شو؟
۳- د لنډمهالي ادارې له جوړېدو کوم کارونه پیل شول؟



## کورنۍ دنده

د لنډ مهالي ادارې په اړه ځوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# بېړنۍ لویه جرګه

## پوښتنه

ستاسو په فکر، بېړنۍ لویه جرګه څرنګه منځته راغله؟



د افغانستان د خلکو له مهمو او لرغونو دودونو څخه یو هم جرګې او لویې جرګې دي چې د هېواد د مهمو ستونزو د حل لپاره جوړېږي.

د بُن د پرېکړو پر اساس د افغانستان د راتلونکي د تعیین، د ملي یووالي د ټېنګښت او د ستونزو د حل او فصل په موخه په ۱۳۸۱ لمریز کال د غبرګولي له ۲۱ مې څخه تر ۳۰ مې نېټې پورې د کابل پولتخنیک پوهنتون کې د (۱۵۰۰) تنو په ګډون بېړنۍ لویه جرګه جوړه شوه.

د بېړنۍ لویې جرګې د پرېکړو مهم ټکي دا وو:

- لنډمهالې اداره دې واک د افغانستان انتقالي اسلامي دولت ته وسپاري.

- د لنډ مهالې ادارې مشر حامد کرزی د ۱۸ میاشتو لپاره د انتقالي اسلامي دولت د رئیس په توګه وټاکل شو.

- د افغانستان د انتقالي اسلامي دولت د ریاست وړاندې شوې کابینه تأیید شوه.

- پریکړه وشوه چې په دې موده کې به د هېواد اساسي قانون د لویې اضطراري جرګې په واسطه تصویب شي او حکومت ته دنده وسپارل شوه، چې په ځانګړې توګه د هېواد د بیا رغونې کړنلاره، ترتیب او د هغې د عملي کولو لپاره اقدام وکړي.



## فعالیت

په ډلو کې د لویې بېړنۍ جرګې په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د لویې بېړنۍ جرګې د استازو شمېر څو تنه و؟

۲- لویه بېړنۍ جرګه په کوم ځای کې دایره شوه؟

۳- په بېړنۍ لویه جرګه کې کومې پریکړې وشوې؟



## کورنۍ دنده

د بېړنۍ لویې جرګې په اړه خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

# دافغانستان انتقالي اسلامي دولت

**پوښتنه**

**پوهېږئ، چې د افغانستان انتقالي اسلامي دولت څرنګه منځ ته راغی؟**



بُن د تاریخي غونډې د تړون او د ۱۳۸۱ لمریز کال د بېړنۍ لويې جرګې د پرېکړو پر بنسټ لنډمهالې ادارې خپل ځای د افغانستان انتقالي اسلامي دولت ته پرېښود.

د لنډ مهالي ادارې مشر حامد کرزی د لويې جرګې له خوا د رايو په اکثريت د افغانستان د انتقالي اسلامي دولت د مشر په توګه وټاکل شو. د افغانستان انتقالي اسلامي دولت ډېرې دندې درلودې چې دلته يې ځينې مهمې يې دا دي:

- د لويې جرګې له خوا د اساسي قانون تصويب.
- د خپلواکو او عادلانه ټاکنو ترسره کول.

- د نویو پیسو(بانکنوټونو) چاپول او وېشل.
- د بشر د حقونو د خپلواک کمېسیون جوړول.
- د ترهګرۍ، نشه يیزو توکو او جناياتو  پر وړاندې مبارزه کول.
- د نړۍ له ټولو هېوادونو، په ځانګړي توګه، له ګاونډيو هېوادونو سره د دوستانه او سوله يیزو اړیکو ټینګول.
- د ملي اردو جوړول.
- عمومي بې وسلې کول.



## فعالیت

د افغانستان د انتقالي اسلامي دولت د دندو په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د افغانستان انتقالي اسلامي دولت څه وخت منځته راغی؟
۲- د افغانستان د انتقالي اسلامي دولت مهمې دندې  بيان کړئ.
۳- لنډ مهالې ادارې خپل ځای په کوم کال د افغانستان انتقالي اسلامي دولت ته پرېښود؟



## کورنۍ دنده

د افغانستان د انتقالي اسلامي دولت د جوړښت په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د هېواد د بيارغونې پيل

**پوښتنه**

د بيارغونې کلمه مو کله اوريدلې ده؟



بيارغونه د هغو شيانو د بيا جوړولو معنا لري چې له منځه تللې وي او يا د استفادې وړ نه وي، لکه: پلونه، ښوونځي، سړکونه او داسې نور.

په خواشينۍ سره د تېل شوو جګړو او بهرنيو هېوادو د لاس وهنو له امله د ښارونو ارتباطي لارې، سوداګري، صنايع، پوهنه، کرنه، مالداري او د هېواد نورو تولېدي بنسټيز تأسيسات يا په بشپړه توګه له منځه لاړل او يا هم ډېر زيانمن شول. د بُن د غونډې له جوړېدو وروسته چې د هغه پر اساس زموږ په هېواد کې نوی نظام جوړ شو. نړيوالې ټولنې ژمنه وکړه چې د افغانستان په بيا رغونه کې زموږ د هېواد له خلکو سره مرسته وکړي.

د حامد کرزي په مشرتوب د لنډ مهالې ادارې له جوړښت وروسته د نړۍ ځينې

هېوادونو د افغانستان د حکومت ترڅنګ زموږ د هېواد بيارغاونې او ودانۍ ته ملا وتړله چې ځينې بيلګې يې دا دي:

د زرګونو کيلو مترو سړکونو او د ښارونو ترمنځ د لويو لارو جوړول او پخول، د روغتونونو، ښوونځيو، پوهنتونونو، د برښنا د بندونو، مخابراتو، فابريکو او د هېواد د هوايي ډګرونو جوړول.

د هېواد د بيارغاونې په موخه د نړيوالې ټولنې ژمنې او د مرستو دوام د هېواد دبيارغاونې لپاره يو ښه فرصت ګڼل کيږي چې ساری يې په تېر مهال کې لږ په سترګو کېږي. په دې توګه د هېواد د بيارغاونې بهير له پلان سره سم دوام ومومند او ورانۍ په ودانۍ بدلې شوې.

موږ بايد کوښښ وکړو چې خپل هېواد د نورو هېوادونو ته له احتياج څخه راوباسو، ليک او لوست ته مخه وکړو او خپل هېواد په خپل همت سره ودان کړو.



## فعاليت

د هغو بيارغاونو په اړه چې تراوسه زموږ په هېواد کې شوې دي په ډلو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- بيا رغاونه څه ته وايي؟

۲- د جګړې په کلونو کې ز موږ د هېواد کوم تأسيسات زيانمن شول؟

۳- موږ د خپل هېواد د آبادۍ په وړاندې څه مسؤوليتونه لرو؟



## کورنۍ دنده

ستاسو په سيمه کې دولتي او غير دولتي مؤسساتو (انجوګانو) څه کارونه ترسره کړي دي؟

# د جمهوري رياست ټاکنې

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر، زموږ د هېواد لومړنی منتخب ولسمشر څرنګه و ټاکل شو؟**



**د جمهوري رياست په موخه دافغانستان خلکو لومړنۍ خپلواکې او عادلانه ټاکنې په ۱۳۸۳ لمريز کال کې تجربه کړې. دا ټاکنې د ۱۳۸۳ لمريز کا ل د تلې د مياشتې په ۱۸ مه د ملګرو ملتونو د استازو او د جمهوري رياست د کانديدانو د استازو په وړاندې تر سره شوې. په دې انتخاباتي مبارزو کې ۱۸ تنو فعال ګډون وکړ. دا ټاکنې په يوه آزاده او آرامه فضا کې ترسره شوې.**

افغان نارینه او ښځې د هېواد د ولسمشر د ټاکلو په موخه د رایې ورکولو ځایونو ته ولاړل او خپلې رأیې یې صندوقونو کې واچولې.

د ټاکنو خپلواک کمیسیون د رایو له شمېرنې وروسته د ۱۳۸۳ لمریز کال د لړم د میاشتې په ۱۳ مه اعلان وکړ چې حامد کرزی له ۵۰٪ څخه د زیاتو رایو په ترلاسه کولو سره ټاکنې ګټلې دي. په دې توګه، حامد کرزی د اساسي قانون د ۶۱ مې مادې په اساس د پنځو کلونو لپاره د افغانستان د اکثریتو خلکو له خوا د هېواد د لومړني منتخب ولسمشر په توګه و ټاکل شو.



## فعالیت

په دې اړه چې څرنګه یو تن د خپل استازي په توګه وټاکو په ډلو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د هېواد د جمهوري ریاست لومړنۍ ټاکنې په کومه نېټه ترسره شوې؟

۲- د جمهوري ریاست په ټاکنو کې څو تنو ځانونه نوماند کړي وو؟

۳-د ټاکنو پایله کله اعلان شوه او پایله یې څه وه؟



## کورنۍ دنده

د ولسمشرۍ د ټاکنو په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

**د څپرکي موخې:**

- د اسلام څخه مخکې د عربستان له اقتصادي او ټولنیز حالت سره پیژندګلوي پیداکړي
- کعبه شریفه وپیژني
- د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د ماشومتوب او ځوانی له دورې سره پیژندګلوي پیدا کړي
- د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د ژوند په اړه معلومات ترلاسه کړي
- د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د بعثت او دعوت په اړه معلومات حاصل کړي
- مدینې منورې ته د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) او د مسلمانانو هجرت تشریح کړای شي
- د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) اخلاق او کړنې د خپل ژوند سرمشق وګرځوي
- د حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) د غزاګانو په اړه توضیحات ورکړای شي
- د مکې د فتحې او د حضرت محمد ﷺ د رحلت په اړه معلومات وړاندې کړای شي.

پنځه دېرشم لوست

## له اسلام څخه وړاندې د عربستان ټولنیز او اقتصادي حالت

**پوښتنه:** څه فکر کوئ، له اسلام څخه وړاندې د عربستان حالت څرنګه و؟

د اسلام د سپیڅلي دین له ظهور څخه وړاندې د عربستان د ټاپو وزمې خلک زیاتره په دښتو او ځینو یې په ښارونو، بانډو او د سمندر په څنډو کې ژوند کاوه. د هرې قبیلې وګړو له یوه مشر څخه چې د شیخ په نامه یادیده اطاعت کاوه. هغه خلکو چې په دښتو کې ژوند کاوه د اوښانو، میږو او وزو په ساتنه کې بوخت و او په هر ځای کې به یې چې د څړ ځایونه موندل، هلته به تلل . د څارویو له شیدو، غوښو، پوستکو او وړیو څخه به یې د ژوندانه اړتیاوې پوره کولې.

هغو خلکو چې په ښارونو او بانډو کې ژوند کاوه، ځینې یې په سوداګرۍ بوخت و او د اړتیا وړ توکي به یې له یمن او شام څخه خپلو سیمو ته راوړل او هلته به یې پلورل.

مکه چې د عربستان تر ټولو مهم ښار و، د یمن، شام او حبشې د سوداګریزې لارې په سرکې پرته وه او له دغه ښار څخه هرلورې ته سوداګریزې لارې غزیدلې وې.

هغه مهال په عربستان کې ټول واک د نارینه وو په لاس کې و او ښځو ته پوره حق نه ورکول کېده هغوی د معمولي توکو په څېر خرڅېدلې، د لوښو درلودل یې عیب ګاڼه او هغوی به یې په خاوروکې ژوندۍ خښولې. هر څوک به چې ځواکمن و هر څه به یې په واک کې و او نور به له هرڅه نه بې برخې و.

د هغوی په منځ کې په وړو وړو خبرو جګړه کېدله او څوک به چې په جګړه کې مغلوب شو، کور به یې لوټ کیده او خپله به د مریي په څېر خرڅیده.

دهغې وخت عربان د علم او تمدن څخه بې برخې وو، هغه مهال، د هغو په منځ کې ناوړو کارونو دود درلوده او پرهغوکارونو یې وياړ کاوه، خو سره له دې، مېرانه، سخاوت، وفا او مېلمه پالنه هم د هغوی په منځ کې موجود وو.



## فعالیت

له اسلام څخه وړاندې د عربستان د خلکو د اقتصادي حالت په اړه په ډلو کې بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- د مکې ښار چیرته دی؟

۲-په عربستان کې له اسلام څخه وړاندې له ښځو سره څرنګه چلند کېده؟

۳- هغو عربو چې په ښارونو کې ژوند کاوه، په کومو کارونو بوخت وو؟



## کورنۍ دنده

له اسلام څخه وړاندې د عربستان د ټاپو وزمې د حالاتو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# کعبه شریفه

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر، له دیني اړخه کعبه شریفه څه اهمیت لري؟**



**حضرت ابراهیم (ع) د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) په امر کعبه شریفه ودانه کړه چې هلته د لوي خدای (جَلَّ جَلاَلُه) عبادت وشي او د مسلمانانو د یووالي سمبول وي.**

**په لومړیو کې د عربستان د ټاپووزمې اوسیدونکي د ابراهیم (ع) لارویان وو او د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) په وحدانیت یې ایمان درلود، خو د وخت په تېریدو د مکې او د هغې د شاوخوا دسیمو خلکو بت پرستي پیل کړه، هغوی به چې کومې مجسمې له ډبرو، لرگیو او فلزاتو څخه جوړولې هغه به یې په کعبه کې اېښودلې او د هغو عبادت به یې کاوه، هرې قبیلې به ځانگړي بت درلود، چې له دې امله کعبه د ټولو قبیلو د زیارت ځای و.**

د قریشو د قبیلې خلکو هم د نورو قبیلو په شان بتان لمانځل او په خرافاتو یې عقیده درلوده. د قریشو اشرافو هم د بت لمانځنې ښخه ننګه کوله، ځکه چې هغوی به د سوداګریزو کاروانونو له تګ او راتګ او له هغو سوغاتونو ښخه چې هغوی به بتانو ته ډالۍ کولې ګټه پورته کوله.

د مکې اوسیدونکي په سوداګریو بوخت وو او ځینو یې د کعبې شریفې اړوندې چارې پرمخ بوولې. د بني هاشم قبیلې د حاجیانو لپاره د اوبو، ډوډۍ او د نورو اړینو شیانو د چمتو کولو دنده په غاړه درلوده. همدارنګه د حج په موسم کې به یې حاجیانو ته اسانتیاوې برابرولې او دا کار یې ځانته ویاړ ګاڼه.

مکه معظمه د کعبې د شتون له کبله د ډېر اهمیت لرونکې ده او کعبهٔ شریفه د مسلمانانو قبله او د هغوی د یووالي سمبول دی، د حج فریضه چې د اسلام د سپېڅلي دین یو مهم رکن دی هلته اداکېږي.



فعالیت

په ډلو کې د کعبې شریفې په اړه خبرې وکړئ.



ځواب ورکړئ

۱- کعبه شریفه چا ودانه کړه؟

۲- قریشو کوم کار په سرته رسولو ویاړ کاوه؟

۳- د مکې مشرکانو به خپل بتان چېرته اېښودل؟



کورنۍ دنده

د کعبې شریفې د اهمیت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) ماشومتوب

**پوښتنه**

ستاسو په فکر، د حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) د ماشومتوب مهال څرنګه و؟

حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) د عبدالله زوي، د عبدالمطلب لمسی، د بني هاشمو له قبیلې او مورېې بي بي آمنه نومیده. په ۵۷۱ م کال، د فیل له پېښې څخه یوکال وروسته وزیږید.

د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) پلار عبدالله په هغه سفرکې چې د ده له زیږیدو څخه مخکې یې یثرب( مدینې) ته کړی و، ناروغ او په مدینه منوره کې وفات شو.

کله چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د عربو د هغه مهال د دود له مخې، چې خپل نوی زیږیدلی ماشومان به یې د شیدو ورکولو او د ښې روزنې لپاره له ښارونو څخه بېدیاو ته لېږل، بي بي آمنې هم رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د شېدو ورکولو لپاره حلیمې سعدیې ته وسپاره.رسول الله (صلی الله علیه وسلم)څلور کاله د بني سعد په قبیله کې له حلیمې سعدیې سره تیر کړل.

کله چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) شپږ کلن شو، مور یې (بي بي آمنه) وفات شوه، له هغه وروسته یې نیکه (عبدالمطلب) د هغه پالنه او ساتنه په غاړه واخیسته او په اته کلنی کې یې نیکه هم وفات شو، له هغه وروسته یې تره ابوطالب ترخپلې پالنې او روزنې لاندې ونیوه.

ابوطالب چې یو سوداګر و په ځینو سفرونو کې به یې حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) هم له ځان سره بووو.

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) چې د ماشومتوب له مهاله د ښو اخلاقو او صفاتو څښتن و، هېڅکله يې داسې کار نه دی کړی چې هغه د ادب او مېړانې خلاف وي.

که مور د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) اخلاق او صفات په ځان کې را ژوندي او عمل پرې وکړو، نو يو ه مهذبه اسلامي ټولنه به ولرو .



## فعاليت

لاندې جملې په ډلو کې داسې سره ونښلوی چې مفهوم يې سم او بشپړ شي.

| | |
|---|---|
| په ۵۷۱ م کال کې | د رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) پلار و. |
| په شپږ کلنۍ کې | د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم) نيکه و. |
| په اته کلنۍ کې | د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) مور وه |
| عبدالله | د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) مور وفات شوه |



## ځواب ورکړئ

۱- رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په کوم کال کې وزېږيد.؟

۲- آيا د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم)د پلار، مور، دايي، تره او نيکه نومونه مو زده دي؟

۳-د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) دايي څوک وه؟



## کورنۍ دنده

د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د اخلاقو په اړه په خپلو کتابچو کې څوکرښې وليکئ.

# د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د ځوانۍ دوره

**پوښتنه**

د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د ځوانۍ د مهال په اړه مو کله څه اورېدلي دي؟

رسول الله(صلی الله علیه وسلم)په ځوانۍ کې هم د ښو اخلاقو، ښه چلند، پر ژمنه، وفادارۍ، امانت ساتلو او رښتینولۍ کې ډېر شهرت درلود.له دې امله به یې هغه امین باله او د عقل لوړوالي یې، هغه له نورو څخه ځانګړی کړی و.

د پورتنیو صفاتو په پام کې نیولو سره د قریشو د شتمنې او عزتمنې ښځې بي بي خدیجې پام حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) ته واوښت،بي بي خدیجې(رض) له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) څخه وغوښتل چې د هغې د سوداګریز کاروان مشري چې شام (سوریې) ته یې د تللو هوډ کړی و پر غاړه واخلي، پیغمبر (صلي الله علیه وسلم) ورانديز ومانه او د بي بي خدیجې(رض) سوداګریز مالونه یې شام ته یووړل او له ډېرې ګټې سره بېرته راغی. کله چې قافله مکې ته راورسېده، د بي بي خدیجې(رض) غلام (میسره) چې له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) سره په دغه سفر کې ملګری و،د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د ښو اخلاقو او فضایلو په اړه بي بي خدیجې ته کیسه وکړه. له همدې کبله خو بي بي خدیجې پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) ته د واده کولو وړانديز وکړ چې د رسول الله (صلی الله علیه وسلم)له خوا ومنل شو. په دغه مهال پیغمبر(ص) (۲۵) کلن و او بي بي خدیجه (رض) (۴۰) کلنه وه.

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د ځوانۍ پرمهال د مکې له ځینو ځوانانو سره

د مظلومانو د دفاع په موخه د «حلف الفضول» په نامه تړون وکړ، همداراز، هغه حضرت (صلی الله علیه وسلم) په ۳۵ کلنۍ، یعنې کله چې قریشو د کعبې د بیا جوړولو هوډ وکړ، د حجرالاسود د ایښودلو پرسر د هغوی ترمنځ ناندرۍ رامنځته شوې چې د ډېرو خبرو اترو وروسته د قریشو مشرانو د دغه اختلاف او ناندریو د حل په موخه داسې پرېکړه وکړه، هرڅوک چې له ټولو د مخه د کعبې دروازې ته راغی د هغه حکمیت به منو، په دغه مهال پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) کعبې ته ورننوت، ټولو نارې کړې چې امین راغی، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په ځانګړي فکر او تدبیر سره حجرالاسود په یوه څادر کې کېښوده او د څادر څنډې یې د قریشو مشرانو په لاس کې ورکړې چې په دې توګه یې د یوې سختې وینې توئیدنې مخه ونیوه.

نو موږ باید د پیغمبر (صلي الله علیه وسلم) له اخلاقو او کردارونو څخه ځانته بېلګه جوړه او د هغه لارویتوب وکړو.



## فعالیت

د لاندې مفاهیمو په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ:

امانت ساتل- رښتینولي او صداقت.



## ځواب ورکړئ

۱- پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) ولې په «امین» مشهور و؟

۲- پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) د حجرالاسود د ایښودلو ستونزه څرنګه حل کړه؟

۳- پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) په څو کلنۍ کې له بي بي خدیجې (رض) سره واده وکړ؟



## کورنۍ دنده

د پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) د اخلاقو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) بعثت

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) څرنګه په پیغبرۍ مبعوث شو؟**

حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم)به هرکال یوه میاشت (روژه) کې د حِرا غار ته ورتللو چې نوموړی غار مکې معظمې ته نږدې. د ((نور په غره)) کې پروت دی. هلته به یې د الله (جَلَّ جَلاَلُه)د قدرتونو او د هغو د شته منظرو په اړه چې په سترګو کېدې، فکر او عبادت کاوه.

یوه ورځ چې حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) له زیږیدو څخه څلوېښت کاله تېرشوي وو، په ۶۱۰ . کال د روژې د میاشتې په اوولسمه نېټه جبرائیل(ع) هغه حضرت (صلی الله علیه وسلم) ته راښکاره شو او ورته ویې ویل: ولوله، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) چې ډېر وېرېدلی و ځواب یې ورکړ، زه خو لوستونکی نه یم. جبرائیل(ع) پیغامبر(صلی الله علیه وسلم) کلک په غېږه کې راونیوه او فشار یې ورکړ،وروسته یې پرېښود بیایې ورته وویل: ولوله، محمد (صلی الله علیه وسلم) بیاهم وویل: لوستونکی نه یم، جبرائیل(ع) د درېم ځل لپاره داسې کلک په غېږکې ونیوه چې د بې هوښۍ احساس یې وکړ. بیایې هغه پرېښود او ورته یې وویل: ولوله د خپل رب پرنامه، هغه رب چې پیداکړی یې دی له غوټه شوې وینې څخه، ولوله چې ستا رب ډېر کریم دی، هغه رب چې انسان ته یې د قلم په واسطه هغه څه وښودل چې پرې نه پوهېده. دا د قرآنکریم لومړنی آیت دی چې پر حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) نازل شو.

رسول الله(صلی الله علیه وسلم) له دغې پېښې څخه په وېره کې شو،کورته وګرځېد او بي بي خدیجې ته یې وویل: ماونغاړه! پرځان وېرېږم، بي بي خدیجې ورڅخه د علت پوښتنه وکړه، محمد (صلی الله علیه وسلم) هغې ته د پېښې کیسه وکړه.

بي بي خديجې پیغامبر (صلی الله علیه وسلم) ته وویل: ای محمد (صلی الله علیه وسلم) الله (جَلَّ جَلاَلُه) به تا هېڅکله؛ گمرا او خوار نه کړي، له خپلوانو سره صله رحمي کوې، د بې وزلو لاس نیوی او ورسره مرسته کوې، مېلمه پال يې او کوم چې حق دي، سرته يې رسوې.

همدغه و چې د قرآنکریم په نازلېدلو سره محمد(صلی الله علیه وسلم) په پیغامبرۍ مبعوث شو او خلک یې د بت پرستۍ پر ځای د یوه خدای (جَلَّ جَلاَلُه) عبادت ته د قیامت پر ورځ د ایمان راوړلو او د خپلې پیغمبرۍ منلو ته يې راوبلل. د الله (جَلَّ جَلاَلُه) له خوا پر پیغمبرۍ باندې د محمد(صلی الله علیه وسلم) غوره کولو ته بعثت وایي.

هغه کسان چې لومړی په اسلام مشرف شول: په نارینه وو کې، ابوبکرصدیق رضي الله عنه، په ښځو کې بي بي خدیجه (رض)، په هلکانو کې علي رضي الله عنه او په غلامانو کې زید بن حارثه وو.

قرآنکریم د الله (جَلَّ جَلاَلُه) وروستنی کتاب او حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د هغه وروستنی پیغمبر دی او له هغه څخه وروسته بل پیغمبر نه راځي.



## فعالیت

په ډلو کې د ښوونکي په مرسته پر پیغمبرۍ باندې د محمد (صلی الله علیه وسلم) د مبعوث کېدلو د څرنگوالي په اړه خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- محمد (صلی الله علیه وسلم) ولې د حِرا غار ته تللو؟

۲- پیغمبر(صلی الله علیه وسلم) په کوم کال او په څوکلنۍ کې په پیغمبرۍ مبعوث شو؟

۳- لومړني کسان چې په اسلام مشرف شول، نومونه يې واخلئ؟



## کورنۍ دنده

د اسلام د سپیڅلي دین د ښېگڼو په اړه له خپلو مشرانو څخه وپوښتئ او په خپلو کتابچو کې يې ولیکئ.

# د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) دعوت

**پوښتنه**

**ستاسو په فکر، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) له بعثت څخه وروسته له کومو ستونزو سره مخ شو؟**

له هغه وروسته چې حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په پیغمبرۍ مبعوث شو، خلک یې په پټه توګه د اسلام سپیڅلي دین ته دعوت کول. په دې کار سره، د مکې یوشمېر زورېدلو خلکو او ځینو مشرانو، د اسلام سپیڅلي دین ومانه، د درې کلونو له تېرېدو وروسته خدای (جَلَّ جَلاَلُه) حضرت (صلی الله علیه وسلم) ته فرمان ورکړ، ترڅو خلک په ښکاره توګه اسلام ته دعوت او هغوی له بت پرستۍ څخه منع کړي.
حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د دعوت لپاره د ارقم کور وټاکه او هغه آیتونه چې پر حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) نازلېدل هغه به یې مسلمانانو ته ویل او د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) احکام یې هغوی ته ورزده کول.
د اسلام دین ورځ په ورځ پراخېده او خلکو له دې دعوت څخه هرکلی کاوه. د مکې د کفارو مشران، د اسلام له نفوذ څخه په وېره کې شول، هغوی به ویل که چېرته بت لمانځنه له منځه لاړه شي، نو هېڅ کله به ونشي کولای چې پرخلکو واکمني وکړي.
له دې امله سره راټول او د حل د لارې په فکر کې شول.
هغوی په لومړي سرکې تصمیم ونیو چې حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په پیسو او یا د مقام په ورکولو راضي او د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) له لارې څخه یې وباسي، ترڅو د اسلام دین له پرمختګ څخه مخنیوی وکړو. هغوی رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ته داسې پیغام ولېږه:
« له دې دعوت څخه لاس واخله، په بدل کې هرڅه که وغواړې تاسو ته یې درکوو، که وغواړې خپلې شتمنۍ به ستاسو په واک کې درکړو او هم تاسو خپلې مشرۍ ته ټاکو، که ناروغ یاستئ درملنه مو کوو ».

حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په ځواب کې وویل: « په خدای قسم، که لمر مې په ښي لاس او سپوږمۍ مې په کیڼ لاس کې راکړي، ترڅو له دې دعوت څخه لاس واخلم، هېڅ کله به داسې ونه کړم، آن تردې که په دې لاره کې خپل ځان هم له لاسه ورکړم ».

کله چې د کفارو مشران وپوهېدل چې حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د اسلام له دعوت څخه لاس نه اخلي د هغه او د هغه د یارانو د زورولو او تنګولو په فکر کې شول. بلال، یاسر، سُمیه او د هغه (صلي الله علیه وسلم)ډېرو نورو یارانو د سختو شکنجو لاندې مقاومت وکړ او ځینې یې په شهادت ورسېدل، آن تردې چې په خپله پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) هم له دغو زورولو څخه په امن کې پاتې نشو او په لارو او کوڅو کې به پر هغه (صلی الله علیه وسلم) یرغل کېده.

له دې ټولو ستونزو سره سره، رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) په خپل هوډ او پرېکړه کې ثابت پاتې او د اسلام له دعوت او د یوه خدای (جَلَّ جَلاَلُه) له عبادت څخه یې لاس وانه خیست.

موږ باید د ژوندانه په ټولو چارو کې د هغه حضرت (صلی الله علیه وسلم) پیروي وکړو.



## فعالیت

د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د دعوت په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د بعثت په پیل کې خلک اسلام ته څرنګه دعوت کول؟

۲- حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د مشرکانو د وړاندیز په ځواب کې څه وویل؟

۳- حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) له څوکلونو وروسته خپل دعوت ښکاره کړ؟



## کورنۍ دنده

د ستونزو په وړاندې د صبر او زغم په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# حبشې ته د مسلمانانو هجرت

## پوښتنه

ستاسو په فکر، د مسلمانانو د هجرت لاملونه څه وو؟




کله چې په مسلمانانو باندې د مشرکانو له خوا کړاوونه او ربړوونه ډېر شـول، نو پيغمبر (صلى الله عليه وسلم) مسلمانانو ته امر وکړ چې حبشې ته هجرت وکړي، ځکه چې د حبشې پاچا يو عادل او زړه سواند شخص و. له همدې کبله مسلمانانو دوه ځلې حبشې ته هجرت وکړ. په لومړي ځل کې (۱۲) تنو نارينه وو او څلورتنو ښځو چې په هغوی کې عثمان بن عفان رضي الله عنه او د پيغمبر(صلي الله عليه وسلم) لور رقيه (د عثمان رضي الله عنه مېرمن) او جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه ګډ وو او په دويم ځل (۸۳) نارينه وو او (۱۸) ښځو هجرت وکړ.

کله چې مشرکين خبرشول، نو ډېر په غوسه شول او د اسلام پرضد يې مبارزه لاسخته کړه. هماغه وو چې د قريشو کفارو ژمنه وکړه چې له مسلمانانو سره اړيکې وشلوي او له هغوی سره راشه درشه او خپلوي ونه کړي او په دې اړه يې يوه عهدنامه وليکله او په کعبه کې يې کېښودله.

له هغه وروسته پيغمبر(صلى الله عليه وسلم) او ملګري يې له مکې څخه بهر د شعب ابي طالب په دره کې اوسيدل او هلته يې درې کاله په ډېرو سختو

حالاتو کې ژوند تېرا وه، تر دې چې پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) د خدای (جَلَّ جَلاَلُه) له لوري خبر شو چې (ویانو) د کفارو عهدنامه خوړلې ده. ابوطالب په دې اړه د مکې کافرانو ته خبر ورکړ او ويې غوښتل چې عهدنامه راوړي او داسې يې وويل: که د رسو الله (صلی الله علیه وسلم) خبره رښتیا نه وه، نو هغه (صلي الله علیه وسلم) به درته وسپارو. کافران لاړل او ويې ليدل چې د رسول الله(صلي الله علیه وسلم) او مسلمانانوخبره رښتیا ده، په دې توګه هغوی پیغمبر(صلی الله علیه وسلم) ته اجازه ورکړه چې بېرته مکې ته وګرځي. له هغه وروسته پیغمبر(صلي الله علیه وسلم) له هر فرصت څخه دمخه اسلام ته د خلکو رابللو په برخه کې ګټه پورته کوله. د حج پرمهال چې خلک مکې ته راتلل، پیغمبر(صلی الله علیه وسلم) به هغوی ته د اسلام په اړه معلومات ورکول او د هغوی په وسیله به يې د خلکو غوږو ته د اسلام بلنه وررسوله. د هغو کسانو له ډلې څخه چې د پیغمبر(صلی الله علیه وسلم)بلنه یې ومنله د مدینې د « اوس» او «خزرج» قبیلو ځینو خلک وو. نو په دې توګه، یثرب ته د مسلمانانو د هجرت لاره هواره شوه.




حبشې ته د مسلمانانو د هجرت په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ.




۱- مسلمانانو د لومړي ځل لپاره چیرته هجرت وکړ؟ او ولې؟

۲- د قریشو کافرانو د مسلمانانو پرضد څه ژمنه وکړه؟

۳- پیغمبر(صلی الله علیه وسلم) او ملګرو يې په شعب ابي طالب کې څو کاله تېر کړل؟




د مسلمانانو د هجرت په اړه څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# يثرب (مدينې) ته د مسلمانانو هجرت

**پوښتنه**

څه فكر كوئ، مسلمانانو يثرب( مدينې) ته ولې هجرت وكړ؟

له يثرب (مدينې) څخه د دوو قبيلو مشران د كعبې د زيارت او طواف لپاره د مكې ښار ته راغلل، په مكه كې د حضرت محمد (صلى الله عليه وسلم)لخوا هغوى د اسلام سپيڅلي دين ته راوبلل هغوى هم دعوت ومانه او اسلام يې راوړ. هغوي په يثرب كې د خداى (جَلَّ جَلاَلُه) د پيغمبر (صلى الله عليه وسلم) او يارانو ته د پنا وركولو ژمنه وكړه. له هغه وروسته د يثرب مسلمانان د انصارو (مرسته كوونكو) په نامه ونومول شول او ژمنه يې وكړه چې په هغه ځاى كې به له هغوى څخه دفاع كوي.

حضرت محمد(صلى الله عليه وسلم)مسلمانانو ته اجازه وركړه، ترڅو د يثرب پرلور هجرت وكړي. مسلمانان د يثرب په لور روان شول، پرته له پيغمبر (صلى الله عليه وسلم)، حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه، حضرت علي رضي الله عنه او له هغو كسانو څخه چې د مشركانو په بند كې وو، نورو ټولو د يثرب لاره په مخكې ونيوله.

كله چې مشركان خبر شول چې د اوس او خزرج قبيلو مسلمانانو ته پناه وركړې او د هغوي لپاره يې د ژوند آسانتياوې برابرې كړي دي، په ويره كې شول او ويې وويل: كه حضرت محمد(صلى الله عليه وسلم) له هغوى سره يوځاى شي سوداګري، اقتصاد او ديني زعامت به يې له ګواښ سره مخامخ او په پاى كې به له منځه لاړ شي او د اسلام دين به پراختيا ومومي.

نو د قريشو مشرانو د ابوجهل په مشرى پريكړه وكړه چې حضرت محمد (صلى الله عليه وسلم) په شهادت ورسوي. د دې كار د ترسره كولو لپاره يې

سل تنه وګمارل او د شپې له خوا يې د حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) کور کلابند کړ.

رسول الله (صلی الله عليه وسلم) په خپل بستر کې حضرت علي رضي الله عنه بيده کړ او خپله د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره د ثور د غار په لوري روان شو. د درې ورځو له تېرېدو څخه وروسته يې د يثرب په لوري لاره ونيوله. په لومړي سر کې د قبا سيمې ته لاړل او د انصارو او مهاجرينو لخوا يې تود هرکلی وشو او هلته يې د قبا په نامه د جومات بنسټ کېښود. بيا د يثرب پر لوري روان شول.

په هغه ځاي کې د اسلام پيامبر (صلی الله عليه وسلم) له مسلمانانو سره يوځای د نبوي جومات د جوړولو کار پيل کړ. همداراز، د مهاجرو او انصارو ترمنځ د اخوت او وروروليـ تړون لاسليک شو او د اسلامي حکومت بنسټ يې کېښود چې له هغه وروسته د يثرب نوم په مدينه منوره بدل شو.




يثرب ته د مسلمانانو د هجرت په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ.




۱-د يثرب مسلمانان ولې په انصارو (مرستندويه) باندې ونومول شول؟

۲- د يثرب خلکو مسلمانانو ته څه ورکړل؟

۳- د يثرب په لوري هجرت کې له پيغمبر(صلی الله عليه و سلم) سره چا ملګرتيا وکړه؟




مدينې ته د مسلمانانو د هجرت په اړه يومطلب په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# په مدینه منوره کې د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) لارښوونې او تعلیمات

**پوښتنه**

څه فکرکوئ، رسول الله (صلی الله علیه وسلم) مسلمانانو ته څرنګه لارښوونې او تعلیمات ورکول؟

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په مدینه منوره کې د اسلامي حکومت د بنسټ ایښودلو وروسته، مسلمانان، خپلواک، یو لاس او سره یو کړل.
د مسلمانانو په ښوونه او روزنه یې پیل وکړ، هغوی ته یې د اسلام د مبارک دین تعلیم ورکاوه، خلک یې له شرك او خرافاتو څخه منع کول او د لمونځ، روژې، زکات او حج اداکولو ته یې رابلل. له بدو کارونو څخه چې د اسلام څخه پخوا دود و، منع کول، نیکو او غوره کارونو ته یې رابلل، لکه: اخلاص، رښتیاویل، مېړانه، مساوات، عدالت، صبر، یو بل ته درناوی، د یتیمانو پالنه، له غریبانو سره مرسته، مور او پلار ته درناوی، له ښځو سره ښه چلند، او نور، په پای کې یې داسې ټولنه رامنځته کړه چې تر ننه پورې یې ساری نه لیدل کیږي.
رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به په ډېرو چارو کې له صحابه وو کرامو سره مشوره کوله او د هغوی خبرې به یې اوریدلې، په ټولنه کې یې نظم، امن، عدالت، مساوات او ورورګلوی راوسته او قانون به یې پر ټولو یوشان عملي کاوه.
رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د ټول بشریت لپاره رحمت و، تل به یې خلکو ته سوله او هوسا ژوند غوښته، د هغه (صلی الله علیه وسلم) د نیکو او ښو اخلاقو له امله د جزیرة العرب خلکو د اسلام مبارک دین ومانه او د ژوند په ټولو برخو کې به یې عملي کاوه او داسې اشخاص یې وروزل چې هریو یې د علم، ښو

اخلاقو، مېرانۍ، سخاوت او زړ ورتيا بېلګې وې. د کفارو مشرانو به تل رسول الله (صلی الله علیه وسلم) او مسلمانانو ته ګواښونه کول او جګړو ته به يې لمن وهله.
د رسول الله(صلی الله علیه وسلم) له ټولو غزاګانو څخه موخه: د ظلم مخ نيوی، د اسلام دين خپرول، د شرک او کفر له منځه وړل، د عدل او انصاف رامنځته کول، خلک له غلامۍ څخه خلاصول، د علم خپرول او د ناپوهۍ له منځه وړل و.
حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) د جګړې په مهال د زړو، ماشومانو، ښځو، او هغو کسانو د وژلو مخه نيوه چې په جګړه کې به يې ګډون نه درلود. همداراز، له بنديانو سره به يې هم ښه چلند کاوه.



## فعاليت

د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د لارښوونو په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به خلک څه ته رابلل؟
۲- رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به خلک له کومو کارونو څخه منع کول؟
۳- رسول الله(صلی الله علیه وسلم) به خلکو ته د کومو کارونو امر کاوه؟



## کورنۍ دنده

د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د غزاګانو موخه څه وه؟ په دې اړه په خپلو کتابچو کې يو مطلب وليکئ.

# د مکې فتح او د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) رحلت

## پوښتنه

څه فکر کوئ، مکه معظمه څرنګه فتح شوه؟

د هجرت په شپږم کال چې د سولې کوم تړون د قریشو د کفارو او مسلمانانو ترمنځ ټینګ شوی و، د هجرت په اتم کال د کفارو له خوا مات شو. له دې وروسته حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) لس زرکسیزه لښکر تیار او د مکې پر لور یې حرکت وکړ، کله چې مکې ته ورسیدل، ابوسفیان او د قریشو نور مشران له جګړې پرته حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) ته تسلیم شول. حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) له هغوی سره د مهربانۍ چلند وکړ او پخپله خواکې یې ځای ورکړ او ورته ویې ویل: هرڅوک چې کعبې ته ننوت په امن کې دی څوک چې د ابوسفیان کور ته پناه یوسي او یا هم په خپلو کورونو کې پاتې شي په امن کې دي. رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د کعبې طواف وکړ او بتان یې له منځه یووړل، وروسته کعبې ته دننه شو او دوه رکعته لمونځ یې ادا کړ او د قریشو کفارو ته یې داسې وویل: ((نن ورځ هغه څه تاسو ته وایم چې یوسف (ع) مخکې خپلو ورونو ته ویلي و. نن پر تاسو کومه ملامتیا نشته ټول آزاد یاست)).

له هغه وروسته حضرت محمد (صلي الله علیه وسلم) د صفا په غره ودریده او ټولو خلکو له هغه سره بیعت وکړ. رسول الله (صلی الله علیه وسلم) په مکه معظمه کې (۱۹) ورځې تېرې کړې او بېرته مدینې منورې ته وګرځېد.

حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) له هغه وروسته چې رسالت یې تکمیل او د اسلام سپیڅلي دین یې ټول عربستان کې خپور کړ، بیا د هجرت په لسم کال د ذوالقعدې په میاشت د حج د مراسمو د ادا کولو په موخه د سلو زرو اصحابو کرامو سره د مکې پر لوري روان شو د حج د مراسمو د ادا کولو وروسته یې د عرفات په غونډۍ مسلمانانو ته ارزښتناکه او له محتوی ډکه وینا وکړه چې ځینې ټکي یې دلته یادوو:

- د جاهلیت د وخت اړوندې ټولې چارې منع دی.
- ستاسو مال او یو د بل وینې تویونه پرتاسو حرام دي.
- د ښځو د حقونو په اړه له خدای (جَلَّ جَلاَلُه) څخه ووېرېږئ، ښځې پرتاسو او تاسو پرښځو حقونه دي.
- ما تاسو ته دوه شیان پرېښي دي، که په هغه عمل وکړئ، هېڅ کله به لاره ورکه نه کړئ او هغه د الله (جَلَّ جَلاَلُه) کتاب او زما سنت دی
- د یوه خدای (جَلَّ جَلاَلُه) عبادت وکړئ، پنځه وخته لمونځونه ادا کړئ، روژه ونیسئ، د مالونو زکات په خوښۍ ورکړئ او د بیت الله حج ادا او جنت ته دننه شئ.

حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د دغې وینا او د حج د مراسمو د بشپړولو څخه وروسته، چې د حجت الوداع په نامه یادېږي، مدینې منورې ته راستون شو او څه موده وروسته ناروغه شو چې د دغې ناروغۍ له امله یې د هجرت په یوولسم کال د (۲۳) کلونو په عمر له دې نړۍ څخه رحلت وکړ.

پیغمبر (صلی الله علیه وسلم) داسې شخصیت و چې قرآن کریم د هغه مبارک په وجود کې په عملي توګه څرګند شوی و، د هغه ژوند د ټولو مسلمانانو لپاره غوره بیلګه ده.



## فعالیت

تش ځایونه په خپلو کتابچو کې په مناسبو کلمو ډک کړئ!

- مکه معظمه په ............................ پرته ......................... فتحه شوه.
- د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) ژوند ........................ لپاره یوه ...................... ده.



## ځواب ورکړئ

۱- مکه معظمه څرنګه فتحه شوه؟
۲- حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په کوم کال کې رحلت وکړ؟
۳- حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) څرنګه شخصیت و؟



## کورنۍ دنده

د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د شخصیت په اړه یو مطلب چمتو او بله ورځ یې په ټولګي کې وړاندې کړئ.

# اسلام او په جزيرة العرب کې د هغه بدلونونه

**پوښتنه**

**ستاسو په نظر، په جزيرة العرب کې د اسلام سپيڅلي دين څه بدلونونه راوستل؟**

**د عربستان د ټاپو وزمې خلک تر اسلام وړاندې مشرکان او د بتانو عبادت يې کاوه، په ځينو سيمو، لکه: مدينه او خيبر کې يهودو او په نجران کې نصرانيانو ژوند کاوه. د دغو سيمو خلکو د بتانو، لمر، سپوږمۍ او د ستورو عبادت کاوه او له هغوی څخه به يې مرسته غوښتله.**

**په هغوی کې ناوړه اعمال، لکه: غلاوې، د نجونو ژوندۍ خښول، وژل، شراب څښل، جادو او کوډې دود وې.**

**د پيغمبر (صلی الله عليه وسلم) له بعثت او د اسلام د سپيڅلي دين له نزول سره سم، د عربستان په ټاپووزمه کې ستر بدلونونه راغلل خلکو له کفر او شرک، څخه لاس واخيست، اسلام ته يې مخه کړه، د جهالت او ناپوهۍ د مهال عادتونه يې پرېښودل او د هغه پرځای يې د منل شويو عقايدو او ارشاداتو ته چې اسلام پرې امر کړی دی، مخه کړه، د بتانو د عبادت پرځای يې د لوي خدای (جَلَّ جَلَالُهُ) وحدانيت ومانه او د رسول الله (صلی الله عليه وسلم) پر نبوت يې ايمان راوړ. اسلامي احکام، لکه: لمونځ، روژه، زکات او حج يې ومنل.**

**نېک اخلاق، لکه: امانت ساتنه، رښتيا ويل، عدالت، د انسان د حقونو رعايت، د مور او پلار، گاونډيو، د ښځو او ماشومانو حقونه او ... يې په خپله**

ټولنه کې دود کړل.

مسلمانانو یوه داسې متمدنه ټولنه جوړه کړه چې په هغې کې پر ښو کارونو امر کېده او ټولو مسلمانانو له هر ډول قومي، نسبي او نژادي توپیر څخه پرته مساوي حقونه لرل.

نو موږ ټول مسلمانانو ته پکاردي چې باید د اسلام د سپېڅلي دین ټول اوامر او لارښوونې په خپله ټولنه کې عملي کړو چې یوه سوکاله او نېکمرغه ټولنه ولرو.



## فعالیت

د هغو بدلونونو په اړه چې د اسلام سپېڅلي دین په عربي ټاپو وزمه کې رامنځته کړل په ډلو کې خبرې اترې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- تر اسلام وړاندې د مشرکان د ناوړو عادتونو نومونه واخلئ.

۲- تر اسلام وړاندې په جزیرةالعرب کې کوم دینونه وو؟ نومونه یې واخلئ.

۳- کوم اخلاق چې اسلام رامنځته کړل نومونه یې واخلئ.



## کورنۍ دنده

د نېکو اخلاقو په اړه په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکئ.

**د څپرکي موخې:**

- د راشدو خلفاوو له پېر (دورې) سره پېژندګلوي پيدا کړي.
- د اسلام په لاره کې د راشدوخلفاوو په مهمو کارونو او خدمتونو پوه شي.
- د راشدو خلفاوو د شخصيت لوړوالی فهرست کړای شي.
- د راشدو خلفاوو د پېر په اړه تشريحات وړاندې کړای شي.
- د اسلام په لاره کې د کارونو، خدمتونو، حکومتي تشکيلاتو، د عدالت او له مبارزو څخه پند تــرلاسه او د تقوا، عدالت او اسلامي روحيه په کې پياوړې شي.

شپږ‌څلويښتم لوست

# د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه خلافت (له ۱۱- ۱۳ هجري پورې)

**پوښتنه:** ستاسو په نظر، د اسلام لومړنی خليفه څوک و؟

**د حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) له رحلت څخه وروسته مهاجرين او انصار د سقيفه بني ساعده په نوم په يوه ځای کې سره راټول شول چې د مسلمانانو د چارو د ښه تنظيم لپاره، يو ښه شخص د خليفه په توګه وټاکي. ديو لړ خبرو اترو او مشورو وروسته د هجري قمري په يوولسم کال د ربيع الاول په مياشت کې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خليفه په توګه وټاکل شو، ټولو انصارو او مهاجرو د زړه له کومې له هغه سره بيعت وکړ.**

**حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په سړيو کې لومړنې کس دی چې د اسلام په دين مشرف شو او په هجرت کې د رسول الله (صلی الله عليه وسلم) د لارې ملګری و.**

**د اسلام په لاره کې د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ځيني مهم کارونه دا دي:**

**- هغو کسانو چې د زکات له ورکړې څخه سر غړولو، هغوی يې په لوړ او عالي تدبير سره د اسلام دين ته متوجه کړل.**

د قرآن شریف هغه مبارک آیتونه او سورتونه یې په یوه مصحف کې راټول کړل چې په بېلابېلو پاڼو کې لیکل شوي وو.

د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په مهال د اسلام د خپرېدو لارې د حجاز ټولو شمالي سیمو ته خلاصې شوې چې د شام په نامه یادیدې او له سوریې، لبنان، اردن او نننې فلسطین څخه عبارت دي.همدارنګه، د بین النهرین (عراق) سیمو ته هم اسلام خپور شو.

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په دیارلسم هجري قمري کال کې له دوو کلونو او دریو میاشتو خلافت څخه وروسته د (۶۳) کلنۍ په عمر وفات شو او په نبوي روضه کې خاورو ته وسپارل شو.



## فعالیت

د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د خلافت په اړه په ډلو کې بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه څرنګه خلافت ته ورسیده؟

۲- د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په دوره کې کوم کارونه وشول؟

۳- لاندې سم عبارت د (ص) په توري او ناسم عبارت د (غ) په توري سره په نښه کړئ.

-حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په ۲۱ هجري قمري کال کې خلافت ته ورسید. (          )

- حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د ۶۳ کلنۍ په عمر وفات شو. (          ).



## کورنۍ دنده

د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د کارونو په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خلافت
# (له ۱۳-۲۴ هجري پورې)

پوښتنه

ستاسو په نظر، د اسلام دویم خلیفه څوک و؟

**حضرت عمر رضي الله عنه په څرګند ډول د بعثت په شپږم کال د اسلام په دین مشرف شو چې د هغه دې کار مشرکان سخت په وېره کې واچول.**

**له دې څخه وروسته حضرت عمر فاروق رضي الله عنه تل د اسلام په خپرولو او ساتلو کې د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په څنګ کې ولاړو او د اسلام په لاره کې یې ډېرې سربښندنې وکړې.**

**کله چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ناروغ شو، نو د خپل ځای ناستي په هکله یې له اصحابو کرامو سره مشوره وکړه، په پایله کې ټولو اصحابو کرامو دغې سپېڅلي او درنې دندې ته حضرت عمر رضي الله عنه وټاکه. کله چې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په دې هکله د خلکو موافقه او رضایت تر لاسه کړ، یو فرمان یې ولیکه، ترڅو هغه فرمان د ده له مړینې وروسته د مسلمانانو په وړاندې ولوستل شي. په دې توګه حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه له مړینې وروسته د هجرت په دیارلسم کال د خلافت مهمه دنده په غاړه واخیسته.**

**هغه مهم کارونه چې د ده په دوره کې شوي دا دي:**

**- د اسلامي خلافت لمن مصر، شام، ایران، عراق او د افغانستان لویدیځو او سویل لویدیځو پولو ته پراخه شوه.**

**- د خلافت تر واک لاندې سیمو د اداره کولو لپاره منظم دفترونه منځته راغلل او د لومړي ځل لپاره د بیت المال (خزانې) نظام او مالیاتي اداره جوړه شوه.**

**- د چارو د تر سره کولو لپاره پاک او پرهیزګاره کسان مقرر شول.**

**- د خلکو دژوندانه د ښه کیدو لپاره لارې، پلونه، مدرسې، جوماتونه، کاروان سرایونه او نوي ښارونه جوړ شول.**

- د حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) د هجرت نېټه د مسلمانانو د تاریخ مبدا وټاکل شوه.

- هرچا کولای شو چې په آسانۍ له هغه سره وويني. د شپې له خوا به يې گزمه کوله، تر څو د خلکو له احوال څخه خبر شي. حضرت عمرؓ په ۲۴ هجرې کال د ذی الحجې د میاشتې په ۲۷مه نېټه په داسې حال کې چې په نبوي جومات کې د سهار په لمانځه ولاړو، ناڅاپې د يوه مجوسي (آتش پرست) مر يې له خوا چې (ابولولو) نوميده، په زهرو لړلې تورې باندې ټپي او بې هوښه شو. کله چې په هوښ راغی، شپږ کسه يې وټاکل چې د ده له شهادت څخه وروسته يو له دوی څخه خلیفه وټاکي.

حضرت عمرؓ د لسو کلونو او پنځو میاشتو له خلافت څخه وروسته د هجرت په (۲۴)کال د (۲۳) کلنۍ په عمر، په شهادت ورسيد او د حضرت محمد(صلی الله علیه وسلم) تر څنگ خاورو ته وسپارل شو. د حضرت عمر فاروقؓ عدالت او ښه حکومت کول د بشر په تاريخ کې يو مثال او نمونه ده.



## فعالیت

د حضرت عمرؓ د شخصیت په اړه په ډلو کې بحث وکړئ.



## ځواب ورکړئ

۱- حضرت عمرفاروق ؓ څرنگه او په کوم کال خليفه شو؟

۲- حضرت عمرفاروقؓ له خپل ځانه وروسته د خليفه د ټاکلو په موخه څه تدبير ونيو.

۳- حضرت عمرفاروق ؓ څرنگه شخصيت و؟



## کورنۍ دنده

د حضرت عمرفاروق ؓ په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د حضرت عثمان رضي الله عنه خلافت
# (له ۲۴ - ۳۶ هجري پورې)

**پوښتنه**

**څه فکر کوئ، د دریم خلیفه په مهال کوم کارونه شول؟**

**د حضرت عمر رضي الله عنه له شهادت څخه وروسته هماغه شپږ کسه: عثمان رضي الله عنه، حضرت علي رضي الله عنه، طلحه رضي الله عنه، زبیر رضي الله عنه، عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه او سعد بن وقاص رضي الله عنه راټول شول. او له درې ورځو مشورو یې حضرت عثمان رضي الله عنه د خلیفه په توګه وټاکه.**

**د حضرت عثمان رضي الله عنه په مهال لاندې مهم کارونه وشول:**

**- هغه شورشونه یې له منځه یوړل چې د اسلامي خلافت په شاوخوا کې رامنځته شوي وو.**

**- قرآن کریم چې د ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت په مهال راټول شوی و، د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په مهال د مصاحفو په ډول ترتیب او اسلامي فتح شویو ځایونوته ولیږل شو.**

**- سمندري ځواک جوړ شو.**

**- دوه ډوله فتحې د مسلمانانو په برخه شوې:**

**- اسلام خپور او سرحدونه یې پراخ شول.**

**د کوچني آسیا ځیني سیمې (اوسنۍ ترکیه)، د شمالي افریقا ځینې برخې او همدارنګه د قبرس جزیره چې د رومیانو په لاس کې وه، فتح شوې او د افغانستان ډیرې سیمې هم په دې مهال د اسلام په سپیڅلي دین مشرفې شوې.**

**حضرت عثمان رضي الله عنه په سخاوت ډیر مشهور و او خپله ټوله شتمني یې د اسلام د خپریدو په لارکې ولګوله.**

د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په وروستیو کلونو کې ځینو کسانو د دوی له حلم څخه ناوړه ګټه پورته کړه او اختلافاتو ته یې لمن ووهله، تر دې چې مخالفانو د دریم خلیفه په کور یرغل وکړ او هغه یې په داسې حال کې په شهادت ورساوه چې سهار د قرآن شریف په تلاوت بوخت و.

د حضرت عثمان رضي الله عنه خلافت له دولسو کلونو وروسته په ۳۲ هجري کال پای ته ورسید.




د حضرت عثمان رضي الله عنه د شخصیت په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ.




۱- د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت موده څو کاله وه؟

۲- د دریم خلیفه په مهال د افریقا کومې برخې فتحې شوې؟

۳- حضرت عثمان رضي الله عنه څنګه خلافت ته ورسید؟




د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د حضرت علی رضي‌الله‌عنه خلافت (۳۶-۴۰ هجري)

## پوښتنه

څه فکر کوئ، د اسلام څلورم خلیفه څوک و؟

حضرت علي کرم الله وجه رضي‌الله‌عنه د ابوطالب زوی او د پیغمبر(صلي الله علیه وسلم) د تره زوی او زوم و؛ لقب یې اسدالله او حیدر و.

هغه له هجرت څخه ۲۱ کاله وړاندې په مکه معظمه کې زېږېدلی؛ او لس کلن و چې د اسلام په سپېڅلي دین مشرف شو.

حضرت علي رضي‌الله‌عنه د اسلام په لاره کې له هیڅ ډول سرښندنې څخه ډډه نه ده کړې. د رسول الله (صلي الله علیه وسلم)د هجرت په شپه د هغه په بستر کې بیده شو، ترڅو هغه کفار چې د رسول الله (صلی الله علیه وسلم)کور یې کلابند کړی و غافل او ډاډمن شي چې محمد(صلی الله علیه وسلم) په خپله بستره کې ویده دی.

د حضرت عثمان رضي‌الله‌عنه له شهادت څخه وروسته، په دویمه ورځ مهاجرو او انصارو له حضرت علي(کرم الله وجهه) سره بیعت وکړ او هغه یې د امیرالمؤمنین په توګه وټاکه. حضرت علي رضي‌الله‌عنه کوفه چې په عراق کې ده، د اسلامي خلافت مرکز وټاکه او د نورو خلیفه ګانو په څېر یې د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) ساده ژوند غوره کړ.

د حضرت علي رضي‌الله‌عنه د خلافت په مهال ټولو اسلامي هېوادنو پرته له شام (سوریې) د هغه پیروي کوله. هغه مهال حضرت معاویه رضي‌الله‌عنه د ابوسفیان زوي د شام حاکم و.

د حضرت علي رضي‌الله‌عنه د خلافت په مهال معاویه رضي‌الله‌عنه او د هغه پلویانو ټینګار کاوه

ترڅو د حضرت عثمان رضي الله عنه قاتلان قصاص شي، خو حضرت علي رضي الله عنه به ويل: کله چې وضع آرامه شي، د حضرت عثمان رضي الله عنه قاتلان به قصاص شي، له دې کبله د جمل او صفين جګړه د حضرت علي رضي الله عنه او معاويه رضي الله عنه ترمنځ پېښه شوه چې جګړه د حضرت علي رضي الله عنه په ګټه تمامه شوه.

حضرت علي رضي الله عنه له پنځه کاله خلافت څخه وروسته په څلوېښتم هجري کال د روژې مبارکې مياشتې په نولسمه د عبدالرحمن ابن ملجم لخوا په زهرجنه توره په داسې حال کې چې د سهار په لمانځه ولاړ و، په سر ټپي شو چې دوې ورځې وروسته په شهادت ورسيد.

حضرت علي رضي الله عنه د پوهې، تقوا، پرهيزګارۍ، مېړانې او نيکو اخلاقو خاوندو. د خپل خلافت په مهال يې وکړای شول چې د ظلم په وړاندې په مېړانه مبارزه وکړي او عدالت او انصاف تأمين کړي.



## فعاليت

د حضرت علي رضي الله عنه د صفاتو په اړه په ډلو کې خبرې وکړئ.



## ځواب ورکړئ

١- حضرت علي رضي الله عنه څرنګه خلافت ته ورسېد؟

٢- د حضرت علي رضي الله عنه په مهال کومې جګړې وشوې؟

٣- حضرت علي رضي الله عنه چا او څرنګه په شهادت ورساوه؟



## کورنۍ دنده

د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت په اړه څو کرښې په خپلو کتابچو کې وليکئ.

# د راشدو خلفاوو پېرته یوه لنډه کتنه

**پوښتنه:** ستاسو په فکر، د راشدو خلفاوو دورې کومې ځانګړتیاوې درلودې؟

د راشدو خلفاوو پېر د هجرت په یوولسم کال د ابوبکرصدیق رضي الله عنه د خلافت په موده کې پیل شو او په څلوېښتم هجري کال د امیرالمؤمنین حضرت علي رضي الله عنه په شهادت باندې پای ته ورسیده.

د رسالت له وخته وروسته د راشدو خلیفه‌ګانو دوره د اسلام په تاریخ کې له ویاړه ډکه او روښانه دوره ده. راشدو خلیفه‌ګانو به ټولې چارې د الهي حکمونو او د پیامبر صلی الله علیه وسلم د سنتو په رڼا کې پرمخ بیولې، هغوي به د اسلام د ګران پیغمبر صلی الله علیه وسلم په څېر له خلکو سره ښه چلند کاوه او د هغوی په لارښوونو به یې عمل کاوه د خلفای راشدینو حکومت له خلکو څخه جوړ او د خلکو په خدمت کې و.

د راشدو خلفاوو په وخت کې به، حکومت: عدالت، انصاف، برابري او وروري تبلیغ او عملي کوله.

راشدو خلفاوو به د خدای (جَلَّ جَلَالُه) او د خلکو پر وړاندې مسؤول او ځواب ورکوونکي ګڼل او ژوند یې ډېر ساده وو.

هرچا به په هر وخت کې کولای شول چې له هغوی سره وګوري او خپلې ستونزې ورته ورسوي، د خلکو په هوساینه او یووالي کې یې زیار او کوښښونه کول، کارونه به یې د کار اهل ته سپارل او له دولتي کارمندانوڅخه به یې په کلکه څارنه کوله.

د راشدو خلفاوو په مهال په دولتي نظام کې د قضا، مالیې، پستې، محاسبې، ښوونې او روزنې او د پوځي نظام اداره منځ ته راغله او پرمختګ یې وکړ او د اسلامي تمدن ډېر نور بنسټونه هم د راشدو خلفاوو په وخت کې رامنځته شول.

د نبوي رسالت څخه وروسته د راشدو خلفاوو دوره د اسلام د دین د تطبیقولو او د راشد اسلامی حکومت روښانه بېلګه ده.



### فعالیت

د راشدینو خلیفه‌ګانو د اخلاقو او کړنو په اړه په ډلو کې سره خبرې وکړئ.



### ځواب ورکړئ

۱- راشدو خلفاوو خپلې حکومتي چارې څنګه پرمخ بیولې؟

۲- د راشدو خلفاوو د ژوند ډول څه رنګه و؟

۳- د راشدو خلفاوو په دوره کې کوم نظامونه منځته راغلل؟ او په څه ډول یې وچلول؟.